# تر پیل د مخه خبري

څو کاله د مخه د هغو زده کوونکو له خوا کوم چي سویډني ژبه یې زده کول غوښتنه را څخه و سوه چي که د دوی د مشکل د حل د پاره سویډني پښتو ګرامر و لیکم. د دوی د مشکل د حل د پاره مي مواد او کتابونه سره را ټول کړه او د دغه لیکني په برابرولو مي پیل و کړ. دغه ګرامر مي ډېر ژر د نومړو زده کوونکو د ګټې اخیستلو د پاره تر تیب کړ. کتاب مي د پښتو www.pashto.se په پاڼه کي هم کښېښود. پسله څه مودې د هغو تدریس کوونکو ښوونکو له خوا را څخه مننه و سوه چي تر زیاتي اندازې پوري د دوی مشکل هم په حل سوئ وو. په دغه وخت کي د مالمو د ښار د Lernia ښوونځي څخه د سویډني ژبي یوې ښوونکي Signum Boström د منني تر څنګ په کتاب کي د ځینو تېروتنو د اصلاحاتو مرسته و کړه. زه د نومړي ښوونکي د مرستي څخه مننه کوم. کتاب مي د هغې د مرستي سره سم اصلاح کړ او پښتو تېروتني مي یې هم تر یو حده سمي کړې. اوس یې دا دئ تر ډېري اندازې پوري د یوه اصلاح سوي کتاب په شکل هم د کتاب په بڼه او هم یې ډیجیټل په نومړې پاڼه کي ایږدم. خدای دي وکړي چي زده کوونکي ګټه تري واخلي.

عبدالعلي رسولزاده
Ali Rasulzada
alirasulzada@hotmai.com

20120221

Innehåll                د عنوانونو فهرست

# د سويډني ژبي الفبې

## دلته به د سويډني ژبي الفبې د امکان تر حده پوري د پښتو تلفظ سره و ليکل سي

| | | | |
|---|---|---|---|
| Aa | آ | P p | پې |
| B b | بې | Q q | کيو |
| C c | سې | R r | اير |
| D d | ډې | S s | ايس |
| E e | اِې | T t | تې |
| F f | ايف | U u | او |
| G g | ګې | V v | وې |
| H h | هو | W w | ډُبلوې |
| I i | اِي | X x | ايکس |
| J j | يي | Y y | اي |
| K k | کو | Z z | سيته |
| L l | ايل | Å å | او |
| M m | ايم | Ä ä | اَې |
| N n | اين | Ö ö | اَو |
| O o | اُو | | |

د پورتنيو تورو د جملې څخه دغه لاندي نهه توري اواز لرونکي Vokaler دي:

(a, e, i, o, u, y, å, ä, ö )

د دغو نهه تورو د جملې څخه دغه څلور توري ( a,o,u,å) د کلکو رږغ لرونکو تورو
hårda vokaler په نامه یادیږي او هغه نور پنځه توري ( e,i,y,ä,ö) د نرمو رږغ لرونکو
mjuka vokaler په نامه یادیږي . هغه نورو پاته تورو ته بې رږغه توري یا
konsonanter وایي . د بې رږغه تورو د جملې څخه که په کوم لغات کې Q, W, Z
راغلي وي نو هغه کلمې د کومې بلې ژبې څخه سویډني ژبې ته راغلي وي .

رږغ لرونکي توري کله لنډ او کله اوږد رږغ ور کوي . که تر یوه رږغ لرونکي توري
وروسته دوه بې رږغه توري راغلي وي نو دغه رږغ لرونکی توری لنډ تلفظ کیږي لکه :

Kväll کوِل

Dags ډگس

Tack تَک

په kväll کې تر ä وروسته ll راغلي دي نو ضرورت نه سته چي ( ä ) اوږده تلفظ کړو
یاني د (کوَېل ) پر ځای یې په کوِل سره تلفظ کوو . په دغه ډول د ډاگس پر ځای
لیکو چي ډگس او د تاک پر ځای تَک لیکو . دا چي په پښتو ژبه کي د عربي ژبي د
زور ، زېر او پېښ څخه کار اخیستل کیږي او نه لیکل کیږي نو ځکه یې موږ هم نه
لیکو .

که تر هر رږغ لرونکي توري وروسته یو بې رږغه توری راغلئ وي نو هغه رږغ
لرونکی توری اوږد تلفظ کیږي چي په سویډني ژبه کي ور ته lång vokal وایي لکه :

Bil بیل

Bok بوک

Tak تاک

دلته به يو شمېر کلمې و ګورو چي څرنګه د کلکو او نرمو رږغ لرونکو تورو د موجوديت په وخت کي خپل اصلي اواز اړوي.

په سويډني ژبه کي د (ش) او (ښ) رږغونه: لکه څرنګه چي تاسي و ليدل د سويډني ژبي په الفبې کي د (ش) او (ښ) توري نه سته او زياتره وختونه تر k, g, sk, tj, sch, sj وروسته د رږغ لرونکو تورو په راوړلو سره دغه د (ش) يا (ښ) رږغ پيدا کيږي لکه:

## لومړی: د (ش) رږغ

الف ـ د (ش) رږغ د K په واسطه: که تر K وروسته نرم رږغ لرونکی توری راسي نو د (ش) رږغ ورکوي. په ياد يې و لرئ چي دغه قاعدې ځيني استثناوي لري.

| | |
|---|---|
| Kina | شينا (چين) |
| Köra | شورا (چلول) |
| Kyla | شيلا (ساړه) |
| Känna | شينا (حسول) |

ب ـ د (ش) رږغ د Tj په واسطه:

| | |
|---|---|
| Tjat | شات (ډېر ځلي ويل) |
| Tjej | شی (نجلۍ) |
| Tjock | شوک (چاغ) |
| Tjugo | شوګو (شل) |
| Tjänst | شېنست (شغل، وظيفه) |

## دوهم ـ د (ښ) ږغ

الف ـ د sk په واسطه: کله چي تر Sk وروسته د نرمو ږغ لرونکو تورو

( e, i, y, ä, ö ) څخه یو توری راسي نو sk د (ښ) ږغ پیدا کوي لکه:

| | |
|---|---|
| Sked | ښېد (کاچوغه) |
| Skild | ښیلډ (جلا) |
| Skydda | ښِډا (ساتل) |
| Skära | ښېرا (پرې کول) |
| Skön | ښَن (ښه ، خوندور) |

ب ـ د Sch په واسط لکه:

| | |
|---|---|
| Schack | ښک (سترنج) |
| Schema | ښېما (مهال وېش) |
| Schimpans | ښمپانس (یوه بیزو ده) |
| Schnitzel | ښنِتسل (یو ډول غوښي دي) |

ج ـ د Sj په واسطه لکه:

| | |
|---|---|
| Sjal | ښال (شال) |
| Sjuk | ښوک (ناروغه) |
| Själ | ښېل (روح) |
| Sjö | ښو (بحیره) |

د ـ د g په واسطه لکه:

| | |
|---|---|
| Generad | ښنېرډ (شرمنده) |

| | |
|---|---|
| Generell | ښینریل (عام) |

هـ ـ د Stj په واسطه لکه:

| | |
|---|---|
| Stjäla | ښَیلا (غلا کول) |
| Stjärna | ښَېرنا (ستوری) |

# کلمه Ord

کلمه یو مانا لرونکی لفظ دئ. هغه کلمې چي په سویډني ژبه کي استعمالیږي په لاندي ډول دي:

| | |
|---|---|
| ۱ ـ نوم (اسم) | Substantiv |
| ۲ ـ صفت | Adjektiv |
| ۳ ـ ضمیر | Pronomen |
| ٤ ـ فعل | Verb |
| ٥ ـ قید | Adverb |
| ٦ ـ د عطف یا تمیز توری (حرف) | Konjunktion |
| ۷ ـ د جر توری (حرف) | Preposition |

# Substantiv (نوم(اسم

نوم هغه کلمې ته ویل کیږي چي د یوه انسان ، حیوان ، ځای ، شي یا پیښي نوم وي لکه:

افغانستان ، احمد ، سړی ، اوښ ، مالمو ، ښځه ، ژړا ، غم او نور .

man, kvinna, Sven, häst, Malmö, sko, glädje…

اسم د مانا له مخي دوه ډوله دئ لکه خاص اسم او عام اسم.

**خاص اسم:** چي په سویډني کي ورته egen namn وایي ، هغه اسم دئ چي د هغه په مثل بل نه وي لکه:

احمد ، کابل ، سویډن ، مځکه او نور

په سویډني ژبه کي د خاص اسم د سر توری یو لوی توری وي. خاص اسمونه لکه د یو چا، هیواد ، ښار ، طبعي شیانو نوم(د غره ، رود ، بحیرې ، بحر او داسي نورو شیانو نوم).

د جادو ، سړکانو ، کتابو ، اخبارو ، فلمو ، شرکتو ، موسسو ، او دفترو ، نومونه خاص نومونه دي او د الفبې په غټو تورو لیکل کیږي لکه:

Sven, Danmark, Himalaya, Amo, Dagens Nyheter, Skolverket…

که چیري کوم خاص اسم د دوو یا څو برخو څخه جوړ سوئ وي نو یوازي یې د لومړۍ برخي د سر توری لوی لیکل کیږي ، پدې شرط چي هغه نوري برخي یې خاص اسمونه نه وي لکه Svarta havet او Mindre Asien په لومړي نوم کي hav خاص اسم نه دئ اما په دوهم نوم کي چي Asien یو خاص اسم دئ ځکه نو په لوی توري لیکل سوئ دئ.

**عام اسم**: هغه نوم ته وايي چي د هغه جنس پر ټولو غړو دلالت وکړي لکه موټر، سړی، مېز، کتاب، هلک، نجلۍ او نور.

په سويډني کي لکه ... bil, pojke, flicka, dörr, skola

د عام اسم ډولونه په لاندي و لولئ:

**الف ــ** د ذات اسم konkreta substantiv : هغه اسمونه دي چي د حواسو په واسطه يې حسولای سو لکه bok, bil, klocka, stol او نور.

**ب ــ** د مانا (معنی) اسم abstrakta substantiv : هغه اسم ته وايي چي سړی يې تصور کولای سي اما ليدلای يا مسه کولای يې نه سي لکه:

| | |
|---|---|
| Sömn | خوب |
| Glädje | خوشالي |
| Snabbhet | چابکي |
| Styrka | قوه |

**ج ــ** د جمع اسم kollektiva substantiv : هغه اسم ته وايي چي په شکل د مفرد وي اما په اصل کي جمع وي او د خپل جنس پر يوه نا معلوم شمېر باندي دلالت کوي او په ليکلو کي د مفرد په شکل ليکل کيږي مگر په خبرو کي اکثره وخت د جمع په شکل راځي لکه: folk, fisk, arme او نور.

**اسم د شمېر له مخي دوه ډوله دئ لکه مفرد او جمع**

مفرد اسمونه هغه اسمونه دي کوم چي د يو جنس يوازي او يوازي يو غړی ښکاره

کوي. په سویډني ژبه کي د مفرد اسم تر مخه en یا ett لیکل کیږي. en والا اسمونه د utrum او ett والا د neutrum په نامه یادیږي. مفرد ته په سویډني کي singularis او جمع ته pluralis وایي.

دا چي کوم اسمونه en والا او کوم ett والا دي، کومه قاعده نه سته.

د مفرد اسمونو څخه جمع اسمونه د لاندنیو قاعدو په واسطه جوړږي:

## لومړی ګروپ:

هغه en والا اسمونه چي په اخر کي یې a راغلې وي جمع یې په دا ډول جوړیږي چي د اسم د اخر څخه a لیري کوي او پر ځای یې or ور اچوي لکه:

| | |
|---|---|
| en flicka | två flickor |
| en blomma | två blommor |
| en skola | två skolor |
| en resa | två resor |
| en gata | två gator |

دلته ځیني استثناوي سته چي جمع یې د دغه قاعدې په خلاف په or جوړیږي ببله دې چي د اسم په پای کي a وي لکه:

| | |
|---|---|
| en ros | två rosor |
| en våg | två vågor |

## دوهم ګروپ:

هغه en والا اسمونه چي جمع یې په ar جوړیږي او پر څلور ډوله دي لکه:

**الف ـ** هغه لنډ اسمونه چي پر اخري اواز لرونکي توري یې زور راغلئ وي لکه:

| | |
|---|---|
| en bil | två bilar |
| en bur | två burar |
| en båt | två båtar |

ب ـ هغه en والا اسمونه چي په اخر کي يې اواز لرونکئ توری راغلئ وي لکه:

| | |
|---|---|
| en pojke | två pojkar |
| en by | två byar |
| en fru | två fruar |

د پورته مثال څخه داسي معلوميږي ، يوازي هغه اسمونه چي په اخر کي يې e راغلې وي e يې په ar بدليږي.

ج ـ هغه اسمونه چي په اخر کي يې er, en, el يا on راغلي وي جمع يې د ar په واسطه داسي جوړيږي چي تر اخر بې اوازه توري د مخه چي يې کوم اوازه لرونکئ تورئ راغلئ وي ، هغه د منځه ځي او د اسم په اخر کي ar ور لويږي لکه:

| | |
|---|---|
| en afton | två aftnar |
| en morgon | två morgnar |
| en fröken | två fröknar |
| en himmel | två himlar |
| en spegel | två speglar |
| en cykel | två cyklar |
| en sommar | två somrar |

دلته ځيني استثناوي سته چي جمع يې د دې قاعدې په خلاف په or جوړيږي لکه:

| | |
|---|---|
| en toffel | två tofflor |

د ـ يو شمېر en والا اسمونه سته چي په اخر کي يې ing يا dom راغلئ وي جمع يې په ar جوړيږي لکه:

| | |
|---|---|
| en tidning | två tidningar |
| en varning | två varningar |
| en våning | två våningar |

| | |
|---|---|
| en sjukdom | två sjukdomar |
| en ungdom | två ungdomar |

په دغه ګروپ کي یو شمېر اسمونه سته چي د جمع په وخت کي څه نور تغیر هم پکښي راځي لکه:

| | |
|---|---|
| en moder ( mor ) | två mödrar |
| en dotter | två döttrar |

## دریم ګروپ:

پدغه ګروپ کي هغه en والا اسمونه راځي چي جمع یې په er جوړېږي او لاندي ډولونه لري لکه:

**الف ـ** هغه لنډ اسمونه چي په یې ږغه توري یا konsonant ختمیږي لکه:

| | |
|---|---|
| en dam | två damer |

**ب ـ** په دغه لاندي اسمونو کي د جمع کولو په وخت کي پخپله په اسم کي تغیر راځي لکه:

| | |
|---|---|
| en hand | två händer |
| en tand | två tänder |
| en stad | två städer |
| en strand | två stränder |
| en natt | två nätter |
| en bok | två böcker |
| en fot | två fötter |
| en rot | två rötter |
| en son | två söner |

دلته یوه استثنا موجوده ده land چي ett والا اسم دئ جمع یې په er جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| ett land | två länder |

ج ـ هغه اسمونه چي په skap, het, ad, ( n ) är ختم سوي وي جمع یې په er جوړیږي لکه:

| | |
|---|---|
| en månad | två månader |
| en frihet | två friheter |
| en egenskap | två egenskaper |
| en station | två stationer |
| en konstnär | två konstnärer |

د ـ دلته هغه اوږده اسمونه راځي چي پر اخري اواز لرونکي توري یې زور راځي لکه:

| | |
|---|---|
| en gardin | två gardiner |
| en kostym | två kostymer |

هـ ـ هغه اسمونه چي د نورو ژبو څخه په سویډني ژبه کي استعمالیږي لکه:

| | |
|---|---|
| en muskel | två muskler |
| en doktor | två doktorer |
| en regel | två regler |

و ـ دلته هغه اسمونه راځي چي په یوه اواز لرونکي توري ختمیږي د جمع په وخت کي یوازي r اخلي لکه:

| | |
|---|---|
| en vikarie | två vikarier |
| en studie | två studier |
| en händelse | två händelser |
| en sko | två skor |

ز ـ دلته يو شمېر ett والا اسمونه راځي چي جمع يې په er جوړېږي لکه:

| | |
|---|---|
| ett bageri | två bagerier |
| ett konditori | två konditorier |

ح ـ دلته هغه ett والا اسمونه راځي کوم چي په eum يا ium سره ختمېږي لکه:

| | |
|---|---|
| ett museum | två museer |
| ett laboratorium | två laboratorier |

ی ـ هغه en والا اسمونه چي په اخر کي يې ion راغلئ وي لکه:

| | |
|---|---|
| en diskussion | två diskussioner |
| en station | två stationer |

## څلرم ګروپ:

دلته هغه ett والا اسمونه راځي چي په يوه اواز لرونکي توري ختم سوي وي او جمع يې په n سره جوړېږي لکه:

| | |
|---|---|
| ett äpple | två äpplen |
| ett hjärta | två hjärtan |
| ett meddelande | två meddelanden |
| ett knä | två knän |
| ett bi | två bin |
| ett ställe | två ställen |
| ett frimärke | två frimärken |
| ett öppnande | två öppnanden |
| ett förtroende | två förtroenden |

**يادونه:** د دغه لاندي ett والا اسمونو په اخر کي که څه هم اوازلرونکي توري دي خو د جمع کولو په وخت کي يې دغه اواز لرونکي توري بدلېږي لکه:

| | |
|---|---|
| ett öga | två ögon |
| ett öra | två öron |

**پنځم ګروپ:** دلته هغه ett والا اسمونه راځي چي د جمع په وخت کي کوم تغير نه پکښي راځي لکه:

| | |
|---|---|
| ett barn | två barn |
| ett hus | två hus |
| ett fönster | två fönster |
| ett rum | två rum |

ځيني نور ett والا اسمونه سته چي د نورو ژبو څخه راغلي دي د جمع په وخت کي کوم تغير نه پکښي راځي لکه:

| | |
|---|---|
| ett universitet | två universitet |
| ett problem | två problem |

يو شمېر en والا اسمونه هم سته چي په پای کي يې are يا ade راغلي وي او د جمع په وخت کي کوم تغير نه پکښي راځي لکه:

| | |
|---|---|
| en lärare | två lärare |
| en murare | två murare |
| en tränare | två tränare |
| en ordförande | två ordförande |

يو شمېر نور en والا اسمونه سته چي د کاسبانو او مليتونو نومونه وي او په er ختميږي د جمع په وخت کي کوم تغير نه پکښي راځي لکه:

| | |
|---|---|
| en tekniker | två tekniker |
| en indier | två indier |

یو شمېر نور en والا اسمونه سته چي د جمع په وخت کي یې د منځ اواز لرونکي توري اوړي لکه:

| | |
|---|---|
| en man | två män |
| en bror | två bröder |
| en far(fader) | två fäder |
| en gås | två gäss |
| en mus | två möss |
| en lus | två löss |

**Bestämd och obestämd form** : د اسم په زده کړه کي یوه بله خبره هم د معین او غیر معین موضوع ده.

کله چي د یوه اسم په هکله خبري کوونکی او اورېدونکی دواړه خبر وي نو دغه اسم د bestämd form په حالت راځي چي د هغه اسم په اخر کي en, n, et یا na ( bestämd artikel ) ور لوېږي. او که یوازي خبري کوونکی د اسم په هکله خبري کوي او اورېدونکی د هغه په هکله معلومات نه لري نو هغه اسم د obestämd form په حالت کي راځي او د اسم تر مخه en یا ett ( obestämd artikel) راځي. دلته به یو مثال راوړو:

Idag kommer en man hem till oss. Mannen har ett barn med sig.

که پورتنۍ دوې جملې په پښتو ترجمه کړو نو به داسي ترجمه سي:

نن زموږ کره یو سړی راځي. سړی د ځانه سره یو کوچنی لري.

په پښتو ژبه کي دغه قاعده دومره ډېره نه سته ځکه که وای نو به مو دوهمه جمله داسي مانا کړې وای: هغه سړی د ځانه سره یو کوچنی لري. چي په دغه ترجمه کي بیا (هغه) یو زیاتي کلمه ده چي راغلې ده. د دې د پاره چي په پښتو ترجمه کي د

bestämd form ترجمه معلومه وي راځئ چي د هغه پرځای د (آ) تورئ و لیکو .

په لومړۍ جمله کي چي man راغلئ دئ obestämd form دئ او en یې تر مخه راغلئ دئ . په دوهمه جمله کي man په bestämd form کي راغلئ دئ ، ځکه یې mannen لیکلئ دئ .

دلته به اوس د اسم obestämd form او bestämd form په مختلفو ځایو کي و لولو .

د bestämd form په وخت کي د اسم تر مخه دغه درې کلمې لیکل کیږي :

د en والا مفرد اسم د پاره den راځي لکه :

Den nya läraren.

آ نوی ښوونکی

Den tokiga mannen.

آ لیوني سړی

د ett والا اسم د پاره det راځي لکه :

Det dyra huset.

آ ګران کور

Det svarta bordet.

آ تور مېز

د اسم د جمع په صورت کي de ورته راځي لکه :

De nya lärarna.

آ نوي ښوونکي

De billiga bilarna.

آ ارزانه موټران

د لاندني جدول له مخي د اسم bestämd او obestämd حالت د مفرد او جمع په صورت کي و لولئ:

| Obestämd form singularis | Bestämd form singularis | Obestämd form pluralis | Bestämd form pluralis |
|---|---|---|---|
| en blomma<br>en skola | blomman<br>skolan | blommor<br>skolor | blommorna<br>skolorna |
| en våning<br>en stol | våningen<br>stolen | våningar<br>stolar | Våningarna<br>stolarna |
| en stad<br>en bok<br>en månad<br>en station<br>en student<br>en sko<br>ett bageri | staden<br>boken<br>månaden<br>stationen<br>studenten<br>skon<br>bageriet | städer<br>böcker<br>månader<br>stationer<br>studenter<br>skor<br>bagerier | Städerna<br>böckerna<br>månaderna<br>stationerna<br>studenterna<br>skorna<br>bagerierna |
| ett knä<br>ett äpple<br>ett öppnande | knät<br>äpplet<br>öppnandet | knän<br>äpplen<br>öppnanden | knäna<br>äpplena<br>öppnandena |
| ett barn<br>ett hus<br>ett fönster<br>en lärare<br>en ordförande | barnet<br>huset<br>fönstret<br>läraren<br>ordföranden | barn<br>hus<br>fönster<br>lärare<br>ordförande | barnen<br>husen<br>fönstren<br>lärarna<br>ordförandena |

# Adjektiv صفت

صفت هغه کلمه ده چي د يوه اسم په باره کي څه وايي. يعني د اسم د ښه‌والي ، بد والي ، کوچني‌والي ، لوی‌والي ، رنګ او داسي نورو حالتونو په هکله څه وايي لکه:

په پښتو کي: غټ ، کوچنی ، تور ، چابک ، ارزانه ، غوړ ، بېکاره او نور.

جګ سړی.

سور سپی.

هوښیاره نجلۍ.

تور ماښام.

په سويډني کي: rolig, dålig, bra, fin, billig, gammal, ny, röd, liten…

En liten stol.

En svart matta.

En lång penna.

En rund bulle.

په پورتنيو جملو کي تر صفتونو لاندي خط کش سوئ دئ

په سويډني ژبه کي د صفت خواص:

**الف ــ** صفت چي د en والا مفرد اسم سره راسي نو کوم تغير نه پکښي راځي

لکه:

Jag har en lång penna.

De köper en gammal bil.

Vi sålde en billig stol.

ب ـ صفت چي د ett والا اسمونو سره راسي نو په پای کي يې t زياتيږي لکه:

Ett <u>högt</u> hus.

Ett <u>rött</u> äpple.

Ett <u>vitt</u> bord.

ج ـ صفت چي د يوه داسي اسم سره راسي چي bestämd form حالت و لري نو د صفت په اخر کي يوه a ور لويږي لکه:

Den <u>svarta</u> katten leker.

آ توره پشي لوبي کوي

Det <u>dyra</u> huset är hennes.

آ ګران کور د دې دئ

De <u>goda</u> kakorna köper jag.

آ خوندوري کلچې زه رانيسم

د ـ صفت چي د اسم د جمع په صورت کي راسي نو د صفت په اخر کي a راځي لکه:

Jag <u>köper</u> tre höga hus.

زه درې جګ تعميرونه رانيسم

Vi har fyra <u>fina</u> stolar.

موږ څلور ښې چوکياني لرو

De vill ha två <u>vackra</u> barn.

دوی دوه ښکلي کوچنيان غواړي

په صفت کي يو شمېر نور بې قاعدې تغيرات راځي چي دلته به يې و لولئ:

لومړی ـ هغه صفتونه چي په بې خجه اوږده اواز لرونکي توري ختم سوي وي د

ett والا اسمونو د پاره دوې ( tt ) اخلي لکه:

| Utrum | Neutrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| ny | nytt | nya |
| fri | fritt | fria |
| grå | grått | gråa |
| blå | blått | blåa |

خج: پر یوه توري چي د اواز زور راغلئ وي.

**دوهم ـ هغه لنډ صفتونه چي په پای کي t لري د ett والا اسمونو د پاره یوه t بله اخلي لکه:**

| Utrum | Neutrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| vit | vitt | vita |
| våt | vått | våta |

**دریم ـ هغه صفتونه چي په t ختمیږي د ett والو اسمونو د پاره کوم تغیر نه پکښي راځي لکه:**

| Utrum | Neutrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| intressant | intressant | intressanta |
| svart | svart | svarta |
| trött | trött | trötta |

**شلورم ـ** هغه صفتونه چي يو اوږد ږغ لرونکی توری و لري او په پای کي يې d
راغلې وي د ett والا اسمونو د پاره يې d په tt بدلیږي او اوږد ږغ لرونکی توری
يې په لنډ ږغ لرونکي توري بدليږي لکه:

| Utrum | Netrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| röd | rött | röda |
| god | gott | goda |
| bred | brett | breda |

**پنځم ـ** هغه صفتونه چي په پای کي يې يو بې ږغه توری او يوه d راغلې وي
d يې په t بدليږي لکه:

| Utrum | Neutrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| hård | hårt | hårda |
| vild | vilt | vilda |

**شپږم ـ** هغه صفتونه چي په پای کي يې بې خجه en راغلئ وي د ett والا
اسم د پاره يې n په t بدليږي او د جمع او bestämd form په صورت کي يې e د
منځه ځي او تر n وروسته a اخلي لکه:

| Utrum | Netrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| vaken | vaket | vakna |
| mogen | moget | mogna |
| avlägsen | avläget | avlägsna |

اووم ـ هغه صفتونه چي په بې خجه el يا er ختم سوي وي د ett والا اسمونو په صورت کي په پای کي t اخلي او دجمع په صورت کي يې e د منځه ځي او په پای کي يې a راځي لکه:

| Utrum | Netrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| enkel | enkelt | enkla |
| vacker | vackert | vackra |
| mager | magert | magra |

د لوړو قاعدو په خلاف liten او gammal داسي صفتونه دي چي د bestämd form او جمع په صورت کي په لاندي ډول تغيير پکښي راځي لکه:

liten

| Obestäm dform **singularis** | Bestämd form **pluralis** |
|---|---|
| en **liten** bil<br>ett **litet** hus | den **lilla** bilen<br>det **lilla** huset |
| Obestämd form **pluralis** | Bestämd **form** pluralis |
| Två **små** bilar<br>Två **små** hus | de **små** bilarna<br>de **små** husen |

gammal

| utrum | Neutrum | Pluralis och bestämd form |
|---|---|---|
| gammal | Gammalt | gamla |

دغه لاندي صفتونه تغيير نه خوري لکه:

| | |
|---|---|
| bra | inrikes |
| extra | utrikes |
| äkta | gratis |
| öde | stakars |
| gammaldags | lagom |

Exempel : Skorna är bra.
Hjälp de stackars människor.
De fick gratis material.
Hon kom i lagom tid.

## د صفت مقايسوي خواص: Adjektivets komparation

په پښتو ژبه کي د صفت دا خاصيت موږ دومره په کار نه اچوو لکه په سويډني ژبه کي چي په کار لويږي. د صفت مقايسه په فارسي ژبه کي ستره او کله کله يې موږ په پښتو کي هم په کار اچوو لکه چي کله کله وايو: دا ښځکی تر هغه ښځکي لوی دئ. اصلا بايد و وايو چي دا ښځکی تر هغه لوی تر دئ. يا وايو چي دا ښځکی تر ټولو لوی دئ. اصلا بايد و وايو چي دا ښځکی لوي ترين دئ. اوس به دا موضوع په سويډني ژبه کي و ګورو .

صفت درې حالته لري لکه: **Positiv, komparativ** och **superlativ**

Komparativ حالت داسي وي چي که يو شی د يوه شي سره مقايسه کوو لکه:

Min bok är dyrare än din.

زما کتاب ستا تر کتاب ګران تره دئ.

Superlativ حالت داسي دئ چي که یو شی د ډیرو شیانو سره مقایسه کوو لکه:

Min bok är dyrast.

زما کتاب ګران ترین دئ.

په سویډني ژبه کي د صفت دغه حالتونه په لاندي توګه جوړیږي لکه:

Grupp I

| Positiv | komparativ | superlativ |
|---|---|---|
| fin | fin**are** | fin**ast** |
| billig | billig**are** | billig**ast** |

د زیاتره صفتونو komparativ او superlativ د پورتنۍ قاعدې په شان وي .

Grupp II

په دغه لاندي لسو صفتونو کي اواز لرونکي توري تغیر کوي لکه:

| positiv | komparativ | superlativ |
|---|---|---|
| ung | yng**re** | yng**st** |
| tung | tyng**re** | tyng**st** |
| stor | stör**re** | stör**st** |
| grov | gröv**re** | gröv**st** |
| låg | läg**re** | läg**st** |
| lång | läng**re** | läng**st** |
| trång | träng**re** | träng**st** |
| få | fär**re** | ______ |
| små | smär**re** | _____ |
| hög | hög**re** | hög**st** |

Grupp III

دا لاندي پنځه صفتونه بې قاعدې دي

| positiv | komparativ | superlativ |
|---|---|---|
| dålig | sämre<br>värre | sämst<br>värst |
| god (bra) | bättre<br>godare | bäst<br>godast |
| gammal | äldre | äldst |
| liten | mindre | minst |
| många | fler | flest |

د sämre, sämst او värre, värst تر منځ يو لږ توپير سته ، په لاندي مثال کي يې

و ګورئ :

Ex : Hon var sjuk i går.

دا پرون ناروغه وه

Idag är hon sämre.

دا نن بدتره ده

Pelle är svår att ha i klassen.

پيله ډېر مشکل دئ چي په ټولګي کي وي

Han är till och med värre än sin bror.

دی حتی تر خپل ورور بدتره دئ

Eva är sämst i klassen. ( kunskaper )

ايوا په آ ټولګي کي خرابترينه ده

Pelle är den värsta eleven i klassen.( = den besvärligaste )

پيله په آ ټولګي کي خرابترين دئ

Grupp IV

هغه صفتونه چي په isk او یا بې خجه ad ختم سوي وي komparativ او superlativ يې په mer او mest سره جوړيږي لکه:

| positiv | komparativ | superlativ |
| --- | --- | --- |
| typisk | mer typisk | mest typisk |
| begåvad | mer begåvad | mest begåvad |

يادونه: د van ، komparativ او superlativ معمولا په mer او mest سره جوړيږي.

Grupp V

Perfekt particip och presens particip چي د صفت په شان په کار لويږي komparativ او superlativ يې په mer او mest سره جوړيږي لکه:

| positiv | komparativ | superlativ |
| --- | --- | --- |
| intresserad | **mer** intresserad | **mest** intresserad |
| förstående | **mer** förstående | **mest** förstående |

يادونه: د Presens particip او Perfekt particip د پاره د فعل په برخه کي وګورئ.

يادونه: هغه صفتونه چي په بې خجه el, -er, -en - ختم سوي وي د komparativ او superlativ په وخت کي يې e د منځه ځي او په پای کي يې are او ast ور لويږي لکه.

| positiv | koparativ | superlativ |
| --- | --- | --- |
| enkel | enklare | enklast |
| vacker | vackrare | vackrast |
| mogen | mognare | mognast |

د **Komparativ** pluralis, sigularis, obestämd, bestämd ټولو د پاره په یو شکل راځي لکه:

Ex : Herr Gren bor i ett billigare hus än Päronkvist, men Gren har intelligentare söner och en vackrare fru.

ښاغلئ ګرین تر پېرون کویست په یوه ارزانه کور کي اوسیږي ، لاکن ګرین تر پېرون کویست ذکي تره زامن او ښکلې تره مېرمن لري.

په پورته جملو کي صفت د مفرد او جمع په حالتونو کي کوم تغیر نه دئ کړئ.

ځکه billigare د کور د پاره راغلئ دئ کوم چي یو مفرد اسم دئ او intelligentare د söner د پاره راغلئ دئ کوم چي جمع اسم دئ.

**Superlativ** د دواړو bestämd او obestämd حالتونو سره راځي لکه:

| | Bestämd form | Obestämd form |
|---|---|---|
| Grupp I | ( den, det, de ) fin**aste**<br>billig**aste**<br>enkl**aste** | fin**ast**<br>billig**ast**<br>enkl**ast** |
| Grupp II | yng**sta**<br>stör**sta** | yng**st**<br>stör**st** |
| Grupp III | säm**sta**<br>äld**sta** | säm**st**<br>äld**st** |
| Grupp IV | mest typisk**a** | mest typiskt-**t-a** |
| Grupp V | mest road**e**<br>mest strålande | mest roa/d –**t de**<br>mest strålande |

۱ ـ یادونه: **هغه صفتونه چي** superlativ **یې په** ast سره ختمیږي د جمع او bestämd form په صورت کي یې په پای کي e راځي.

**هغه صفتونه چي** superlativ یې په st سره ختمیږي د جمع او bestämd form په صورت کي یې په پای کي a اخلي.

۲ـ یادونه : د هغه صفتونو او Particip چي komparativ او superlativ حالت يې په mer(a ) او mest جوړيږي د جمع او bestämd form superlativ په هغه شکل وي لکه په اصلي حالت positiv کي. مثالونه يې پورته په Grupp IV او Grupp V کي و ګورئ .

# ضمیر Pronomen

ضمیر هغه کلمه ده چي د اسم پر ځای راځي لکه:

په پښتو کي: زه ، موږ ، ته ، تاسي ، زما ، زموږ او نور

په سویډني کي:

Jag, vi, du, ni, min, din, han….

ډېر ضمیرونه درې حالته لري لکه فاعلي subjektiv، مفعولي objektiv او اضافي genitiv . دغه درې حالته يې د شخصي ضميرونو personliga pronomen په نامه یادیږي. چي دغه genitiv حالت يې اکثره وختونه د possessiva pronomen يعني ملکي ضمیر په نامه یادیږي.

ضمير متكلم första person، مخاطب andra person يا غايب tredje person حالتونه لري او د متكلم ، مخاطب او غايب په حالتو كي مفرد او جمع لري لكه:

**متکلم** första person : متكلم هغه څوک دئ چي خبري كوي. د متكلم ضمير مفرد او جمع لري لكه:

په پښتو كي:

**د متکلم مفرد ضمیر : زه ، ما**

**د متکلم جمع ضمیر : موږ**

**مخاطب** andra person : مخاطب هغه څوک دئ چي خبري ور ته كيږي. د مخاطب ضمير مفرد او جمع لري لكه:

**د مخاطب مفرد ضمیر : ته ، تا**

**د مخاطب جمع ضمیر : تاسي**

**غایب** tredje person : غایب هغه څوک دئ چي متکلم یې په باره کي

خبري کوي. د غایب ضمیر مفرد او جمع لري لکه:

**د غایب مفرد ضمیر : دی ، دا ، دغه**

**د غایب جمع ضمیر : دوی**

په سویډني کي:

| | | |
|---|---|---|
| Första person singularis | : | jag |
| Första person pluralis | : | vi |
| Andra person sigularis | : | du |
| Andra person pluralis | : | ni |
| Tredje person singularis | : | han, hon, den, det |
| Tredje person pluralis | : | de |

**الف ـ د ضمیر فاعلي حالت** Subjektform : **فاعل** هغه څوک دئ چي یو

کار کوي یعني په جمله کي **فعل** د ده دخوا اجرا کیږي لکه:

په پښتو کي :

زه

موږ

ته

تاسي

دی ، ده ، دا ، دې ، دغه

دوی

په سویډني کي :

**Subjektform**

jag

vi

du

ni

han, hon, den, det

de

**ب ـ د ضمیر مفعولي حالت** Objektform : مفعول هغه څوک یا شی دئ

چي د فاعل فعل پر اجرا کیږي لکه :

په پښتو کي :

زه ، موږ

ته ، تا

تاسي

دی ، دا ، دغه

دوی

په پښتو ژبه کي مفعولي ضمیرونه په فعل او زمانه پوري اړه لري. د دې یو مثال

(زه) چي په مفعولي ضمیرونو کي راغلئ دئ فاعلي ضمیر هم دئ لکه :

زه ښوونځي ته ځم. دلته زه فاعلي ضمیر دئ.

دوی زه و لیدم. دلته زه مفعولي ضمیر دئ.

په سویډني کي :

**Objektform**

mig

oss

dig

er

honom, henne, den, det

dem

ج ـ ملکي (اضافي) ضمیر genitiv ( possessiv) : ملکي ضمیر هغه ضمیر دئ چي د یو شي ملکیت ښکاره کوي لکه :

په پښتو کي :

زما

زموږ

ستا

ستاسي

د ده ، د دې ، د دغه

د دوی

په سویډني کي: ملکي ضمیر په سویډني ژبه کي د ett والا اسمونو او جمع د پاره داسي نه وي لکه د en والا اسمونو د پاره لکه :

**Possessiva pronomen**

| Utrum | Neutrum | Pluralis |
| --- | --- | --- |
| min | mitt | mina |
| vår | vårt | våra |
| din | ditt | dina |
| er | ert | era |
| hans | hans | hans |
| hennes | hennes | hennes |
| dess | dess | dess |
| deras | deras | deras |

پهسویډني ژبه کي یو ډول ضمیر سته چي د انعکاسي ضمیر reflexiva pronomen په نامه یادیږي چي په پښتو کي یې د مشترک ضمیر په نامه بولي. دا ضمیر په داسي حال کي استعمالیږي چي د فاعل فعل بیرته په خپله پر فاعل باندي اجرا کیږي لکه :

Jag tvättar mig. زه خپل مخ مینځم.

دا ضمیرونه په لاندي ډول دي :

| Subjektform | Reflexiva pronomen |
| --- | --- |
| jag | mig |
| vi | oss |
| du | dig |
| ni | er |
| han | sig |
| don | sig |
| den, det | sig |
| de | sig |

دلته به د دغه ضمیرونو یو څو مثالونه و لولئ :

Jag tvättar mig i varmt vatten.

زه خپل مخ په تودو اوبو مینځم

Vi tvättar oss i varmt vatten.

موږ خپل مخونه په تودو اوبو مینځو

Du tvättar dig i varmt vatten.

ته خپل مخ په تودو اوبو مینځې

Ni tvättar er i varmt vatten.

تاسي خپل مخونه په تودو اوبو مینځئ

Han tvättar sig i varmt vatten.

دی خپل مخ په تودو اوبو مینځي

Hon tvättar sig i varmt vatten.

دا خپل مخ په تودو اوبو مینځي

Den, Det tvättar sig i varmt vatten.

دغه خپل مخ په تودو اوبو مینځي

De tvättar sig i varmt vatten.

دوی خپل مخونه په تودو اوبو مینځي

## انعکاسي ملکي ضمیرونه reflexxiva possessiva pronomen لکه :

| Subjektform | Possessiva pronomen | Reflexxiva possessiva pronomen |
|---|---|---|
| jag | min | min, mitt, mina |
| vi | vår | vår, vårt, våra |
| du | din | din, ditt, dina |
| ni | er | er, ert, sra |
| han | hans | sin, sitt, sina |

| | | |
|---|---|---|
| hon | hennes | sin, sitt, sina |
| den, det | dess | sin, sitt, sina |
| de | deras | sin, sitt, sina |

Jag kammar mig med min kam.

زه خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوم

Vi kammar oss med vår kam.

موږ خپل سرونه په خپلو ږمنځو ږمنځوو

Du kammar dig med din kam.

ته خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوې

Ni kammar er med er kam.

تاسي خپل سرونه په خپلو ږمنځو ږمنځوئ

Han kammar sig med sin kam.

دی خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوي

Hon kammar sig med sin kam.

دا خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوي

Den, Det kammar sig med sin kam.

دغه خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوي

De kammar sig med sin kam.

دوی خپل سرونه په خپلو ږمنځو ږمنځوي

لاندي به يو څو جملې و لولئ چي د ملکي ضمير او ملکي انعکاسي ضمير توپير به يې د پښتو ترجمې د لاري وکړئ.

1- Han kammar sig med sin kam.

دی خپل سر په خپله ږمنځ ږمنځوي

2- Han kammar honom med sin kam.

دی په خپله ږمنځ د ده سر ور ږمنځوي.

3- Han kammar sig med hans kam.

دی خپل سر د ده په ږمنځ ږمنځوي.

4- Han kammar honom med hans kam.

دی د ده په ږمنځ د ده سر ور ږمنځوي.

یادونه: په پورتنیو سویډني جملو کي د سر نوم نه دئ راغلئ اما په پښتو ترجمه کي د سر کلمه راغلې ده . دا ځکه چي په پښتو کي سړی نه سي ویلای چي دی په خپله ږمنځ خپل ځان ږمنځوي . ځکه د یوې ژبې څخه و بلې ژبې ته د ترجمې په وخت کي سړی ناچاره وي چي یو شمېر کلمې د منځه یوسي او یا یې منځ ته راوړي او کوښښ و کړي چي توري په توري ترجمه و نه کړي..

په لومړۍ جمله کي ترجمه سمه ده ، مګر په دوهمه جمله کي Han ( a ) نفر دئ او Honom ( b ) نفر دئ چي ( a ) نفر یې د (a ) نفرپه ږمنځ سر ور ږمنځوي.

په دریمه جمله کي Han ( a ) نفر دئ او خپل سر د hans ( b ) نفر په ږمنځ ږمنځوي.

په څلورمه جمله کي Han ( a ) نفر د ده honom ( b ) نفر سر د hans ( b ) نفر په ږمنځ ور ږمنځوي.

## Indefinita pronomen مبهم ضمیرونه:

دغه ضمیرونه یو غیر معین حالت لري یعني یو خاص شی نه تعینوي مثالونه یې په لاندي ډول دي.

## الف ـ

någon

något

några

någonting

مثال:

Har du någon penna?

ته کوم قلم لرې ؟

Ringde någon igår?

کوم چا پرون تلفون و کړ ؟

Vi köper inte något hus i år.

موږ سږ کال کوم کور نه رانيسو .

Kan du vänta på oss några dagar?

کولای سې چي موږ ته څو ورځي و درېږې ؟

Jag har inte sett någonting av filmen.

ما د آ فلم کوم شی نه دئ ليدلئ .

په ورځنيو خبرو کي دغه څلور ضميرونه داسي ويل او يا ليکل کيږي لکه:

| | |
|---|---|
| någon | *nån* |
| något | *nåt* |
| några | *nåra* |
| någonting | *nånting* |

ب-

ingen

inget

inga

ingenting

مثال:

Har du ingen bil?

ته هیڅ موټر نه لرې؟

Han såg inget päron.

ده هیڅ ناک و نه لید .

Hon hade inga pengar.

Det gör ingenting.

هیڅ پروا نه کوي.

**یادونه:** کله چي ingen, inget, inga, ingenting مفعولي حالت و لري او په یوه ساده زمانه کي راغلي وي نو په huvudsats کي راځي. په نورو حالتو کي په bisats کي راځي او شکل یې تغییر کوي لکه:

| **Huvudsats** | **Bisats** |
|---|---|
| ingen | inte…någon |
| inget | inte…något |
| inga | inte…några |
| ingenting | inte…någonting |

لکه:

| | |
|---|---|
| Har du ingen bil? | Har du inte haft någon bil? |
| Jag såg ingen på gatan. | Jag har inte sett någon på gatan. |
| Det gör ingenting. | Han säger att det inte gör någonting. |

## Bisats och huvudsatas :

Huvudsats کاملي یا پوره جملې ته وایي. د دې مانا داده چي اورېدونکی پوره مطلب ځني اخلي لکه:

Ahmad gick hem.	احمد کور ته ولاړ.

Bisats : دا یوه نا مکمله جمله ده ځکه چي اورېدونکی د دې جملې څخه پوره مطلب نه سي اخیستلای او د یوې بلي جملې غوښتونکی ویي لکه:

کله چي زه راغلم، دا یو bisats دئ ځکه چي اورېدونکي پوره مطلب ځني وا نه خیست. اوس نو باید یوه بله جمله و ویله سي چي اورېدونکی مطلب ځني واخلي هغه جمله به نو یو huvudsats وي لکه:

کله چي زه راغلم، ته تللئ وې.

När jag kom, hade du åkt.

مفصل بیان به یې د konjunktion په برخه کي راسي.

موږ په پښتو کي کله کله وایو چي، سړی دي خپل کارونه سر ته و رسوي. په سویډني ژبه کي هم دغه man استعمالیږي چي فاعلي، مفعولي او ملکي حالتونه لري لکه:

man ( en, ens, sin, sitt, sina )

subjekt : man

objekt : en

genitiv : ens, sin, sitt, sina

دلته به man د han سره وګورو .

han, honom, hans, sin

| | | |
|---|---|---|
| han | man | Ex : När man kör mot rött ljus, |
| honom | en | stoppar polisen en och frågar |
| hans | ens | efter ens körkort. Man måste då |
| sin | sin | ta upp sitt körkort och visa det |
| | | för polisen. |

ترجمه :کله چې سړی موټر تر سره څراغ تېر کي ، پولیس سړی دروي او د سړي څخه د لایسنس پوښتنه کوي . سړی نو بیا باید خپل لایسنس ور ته را و باسي او پولیس ته يې ور و ښيي .

| | |
|---|---|
| all, allt, alla | EX : Under festen tog all mat slut. |
| allting | Han åt upp allt bröd. |
| | Hon ska bjuda alla vänner på festen. |
| | Han kan göra allting. |

ترجمه : په مېلمستیا کي ټوله خواړه خلاص سوه . دې ټوله وچه ډوډۍ و خوړه . دا به ټوله ملګري مېلمستیا ته مېلمانه کي . دی هر څه کولای سي .

که چیري اسم دوه تنه وي نو all یا alla نه ورته راځي بلکي båda یا bägge ور ته راځي لکه :

Jag har två gäster. Båda är mina klasskamrater.

زه دوه مېلمانه لرم . دواړه زما همصنفیان دي .

Allra قید( adverb ) دئ لکه :

Hon gjorde sitt allra bästa.

دې خپله ټوله هڅه وکړه .

Allra först kom han.

دی تر ټولو د مخه راغئ.

Hel, Helt, Hela

Ex : Hon åt en hel melon.

Hon har bott ett helt år i Paris.

Hon var här hela dagen.

ترجمه: دې يو درست ختکی و خوړ. دا يو درست کال په پاريس کي اوسېدلې ده.

دا درسته ورځ دلې وه.

var, vart, varje, varendra, var och en, etc.

Ex : Det gör jag **var** dag.

Det gör jag **varje** dag.

Det gör jag **varenda** dag.

زه يې هره ورځ کوم.

**Varje** människa har rätt till fri sjukvård.

هر انسان د ازادو روغتيايي چارو حق لري.

Hon cyklade till arbetet varje dag utom då det snöade.

دا هره ورځ تر کاره پوري پر بايسکل تله بېله هغه ورځي څخه چي واوره اورېده.

Maten blir dyrare för **Vart** år.

خواړه هر کال ګرانيږي.

Hon städade huset **varenda** dag och dammsög **varenda** rum mycket noggrant.

دې هره ورځ کور پاکاوه او هره کوټه يې په ډېر دقت جارو کوله.

که var يوازي راسي نو دهرسړي معنا ور کوي لکه:

Ex : Barnen åt en smögås var = Barnen åt var sin smörgås.

هر ماشوم يو سمرګوس وخوړ.

Flickorna fick ett äpple var = Flickorna fick var sitt äpple.

هري نجلۍ يوه يوه مڼه واخيسته.

De lånade två böcker var = De lånade var sina två böcker.

دوی هر يوه يو يو کتاب پور کړ.

var och en, vart och ett

Ex : Var och en av flickorna = alla flickor

varje flicka ( i den gruppen )

Ex : Var och en som önskar stanna en längre tid i ett främmande land måste ha uppehållstillstånd.

هر څوک (هر يو ) چي غواړي په يوه پردي هيواد کي د ډېر وخت د پاره پاته سي

بايد د پاته کېدو اجازه ولري.

Jag anser att detta är vars och ens ensak.

زه فکر کوم چي دا د هر چا شخصي کار دئ.

varannan, vartannat, varandra

Ex : Varannan bil körde för fort.

يو نه بل موټر تېز تئ.

Vartannat hus var blått och vartannat rött.

يو نه بل تعمير شين وو او يو نه بل سور وو.

Var femte invånare i samhället är över 70år.

په آ ټولنه کي هر پنځم نفر تر اوياوو کالو اووښتئ وو.

De väljer president vart fjärde år.

دوی هر څلرم کال جمهور ريس ټاکي.

De älskar varandra och träffar varandra vareenda dag.

دوی يو پر بل سره ګران دي او هره ورځ يو او د بل سره وينی.

Vem som helst, vad som helst

Ex : Är det någon här i klassen som kan översätta den här texten.

ایا په دې ټولګي کي کوم څوک سته چي کولای سي دغه متن ترجمه کي ؟

_ Javisst, det kan vem som helst göra, eftersom texten är så lätt.

هو ، هر څوک يې کولای سي ، ځکه چي دا متن اسانه دئ.

Han kunde göra vad som helst för sin fru.

ده د خپلي مېرمني د پاره هر څه کولای سوای.

Jag måste ha en ny klänning till festen på lördag , men jag vill inte ha vilken klänning som helst.

زه بايد د شنبې د ورځي د مېلمستيا د پاره يو نوی کميس ولرم ، مګر زه هر کميس چي وي نه غواړم.

## موصول ضمير Relativa pronomen :

هغه ضمير ته وايي چي بيرته اشاره کوي و يوې يا څو کلمو ته کوم چي په هغه جمله کي راغلي وي.

عاديترين موصول ضمير som دئ کوم چي د انسانانو ، حيوانانو او شيانو د پاره د مفرد او جمع په صورت کي راځي. som دواړه د فاعل او مفعول په شکل راځي.

سړی کولای سي چي د som پر ځای کوم بل موصول ضمير راولي لکه vilken vilket يا vilka

Som

Ex :

Subjekt Pojken, **som** går där borta, är min bror.

آ هلک چي هلته رهي دئ ، زما ورور دئ.

Objekt Pojken **som** du ser där borta, är min bror.

آ هلک چي ته يې هلته وينې زما ورور دئ.

Ingen kunde svara på frågorna **som** läraren ställde.

هيڅچا و آ پوښتنو ته جواب نه سواى ور کولاى کوم چي آ ښوونکي وکړې.

Preposition Stolen, **som** du sitter **på**, har jag fått av min far.

آ چوکۍ چي ته پر ناست يې ، ما زما د پلار څخه اخيستې ده.

+ relativ pronomen Tavlan, **om vilken** alla experter hade olika åsikter, visade sig vara en välgjord förfalskning.

آ تابلو، د کومي په باره کي چي ټولو متخصيصونو د هغې په اړه مختلف نظرونه درلوده ، ځان يې ښکاره کړ چي ښه جعلي جوړه سوې وه.

Vars, vilkas

Vars د som پر ځاى د مفرد په شکل د ملکيت د پاره هم راځي لکه:

Ex : Huset, **vars** ägare var bortrest, brann ner till grunden.

آ کور ، د کوم چي څښتن يې په سفر تللئ وو تر مځکي پوري و سوځېد.

Vilka د som پر ځاى د جمع په شکل د ملکيت د پاره هم راځي لکه:

Ex : Barnen, **vilkas** föräldrar var bortresta, kände sig ensamma.

آ ماشومان ، د کومو چي والدين په سفر تللي وه ، ځانونه يې يوازي حسول.

کېداى سي چي vars په نسبتي attributivt حالت کي د جمع د پاره راسي لکه:

Ex : Barnens, **vars** föräldrar var bortresta, kände sig ensamma.

Vilken, vilket, vilka

| Grundform | Genitiv |
|---|---|
| **vilken** ( utrum ) | **vilkens** |
| **vilket** ( neutrum ) | **vilkets** |
| **vilka** ( pluralis ) | **vilkas** |

Ex : En sommarstuga är en stuga i **vilken** jag bor på sommaren.

یو د اوړي کور یو کور دئ په کوم کي چي زه په اوړي کي اوسېږم.

Huset, i **vilket** jag bor är tio år gammal.

آ کور ، په کوم کي چي زه اوسېږم لس کاله زوړ دئ.

Pojkarna, **vilka** jag såg på gatan, hade svarta kostymer.

آ هلکان ، کوم چي ما په جاده کي و لیدل ، توري درشیاني یې درلودې.

## اشاري ضميرونه Demonstrativa pronomen :

دا ضميرونه هغه چا یاشي ته اشاره کوي ، د کوم په باره کي چي سړی خبري کوي

لکه: دغه ، هغه او نور.

په سويډني کي:

den här, det här, de här, etc.

| | |
|---|---|
| **den här** | **den där** ( utrum ) |
| **det här** | **det där** ( neutrum ) |
| **de här** | **de där** ( pluralis ) |

Ex : **Den här** boken är min. دغه کتاب زما دئ.

**Den där** måste vara din. هغه باید ستا وي.

**Det där** bordet köpte jag igår. دغه مېز ما پرون رانیوئ.

Jag vill inte ha **de här** stolarna. زه دغه چوکیاني نه غواړم

Jag vill ha **de där** i stället. پر ځای یې هغه غواړم.

den, det, de

den او det دواړه په یوازي Självständigt توګه او په نسبتي attributivt توګه راځي لکه:

Ex : **Den pennan** vill jag ha.

دغه قلم زه غواړم.

**Den** ska jag köpa i morgon.

دغه به زه سبا رانیسم.

Var har du fått **det bordet** och **de stolarna** från?

دغه مېز او دغه چوکیاني تا د کومه کړي دي.

De کولای سو چي په نسبتي attributivt توګه د فاعل او مفعول په توګه د ربط تر توري preposition وروسته راولو. په یوازي توګه د فاعل په شان راځي. Dem یوازي självständigt د مفعول په شان تر preposition وروسته راځي.

Hur många lägenheter finns det i **de husen** ?

په آ تعمیرونو کي څو کورونه سته؟

Jag vet inte hur många det finns i **dem**, men i det här huset finns det tålv.

زه نه پوهېږم چي په هغو کي څو سته، مګر په دغه تعمیر کي دولس کورونه سته.

Denna, Detta, Dessa

| |
|---|
| **Denna** ( utrum ) |
| **Detta** ( neutrum ) |
| **Dessa** ( pluralis ) |

Ex : **Denna** fråga är mycket svår att besvara.

دغه پوښتنه ډېره مشکله ده چي جواب ور ته ورکړو .

I **detta** hus bodde Strindberg fram till sin död.

په دغه کور کي ستريندبيري تر مرګه پوري اوسېدئ.

**Dessa** svårigheter hade jag inte väntat mig.

د دغه مشکلاتو انتظار مي نه وو ايستلئ.

Vad säger du om **detta**?

د دغه په باره کي څه وايې ؟

Sådan, Sådant, Sådana

| |
|---|
| **Sådan** ( utrum ) |
| **Sådant** ( neutrum ) |
| **Sådana** ( pluralis ) |

Ex : Han vill ha en **sådan bok**.

دی يو دغسي کتاب غواړي.

Hon vill köpa en **sådan** åt honom i morgon.

دا غواړي چي د دغه په شان سبا و ده ته يو ور رانيسي.

Hur kan du säga något **sådant**?

ته څرنګه داسي څه ويلای سې ؟

**Sådana personer** som ni måste få höra sanningen ibland.

دا ډول کسان چي تاسي باید ځیني وختونه رشتیا ځني واورئ.

په خبرو کي کیږي چي په پورتنیو ضمیرونه کي په لاندي ډول تغییر راسي لکه:

| | |
|---|---|
| sådan | sån |
| sådant | sånt |
| sådana | såna |

samma

Samma د en والا ett والا ، جمع او مفرد سره په ټولو حالتو کي یو شان راځي لکه:

Ex : Han hade **samma rock** i fem år.

ده دغه بالاپوښ دا پنځه کاله درلودئ.

De har bott i **samma hus** i hela sitt liv.

دوی په داغه کور کي ټوله عمر اوسېدلي دي.

Hon har **samma kläder** idag som igår.

دا نن یو ډول کالي لري لکه پرون.

densamma, detsamma, desamma

Ex : Efter giftermålet var hon inte längre densamma.

پسله واده څخه نو نور دا د پخوا په شان نه وه.

Planläggandet av projektet blev, liksom utförandet av detsamma, mycket kostbart.

د پروژې پلان ګذاري د عملي کولو په شان هغومره ډېر ګران تمام سول.

# فعـــل Verb

فعل هغه کلمه ده چي د يوه کار کول ځني ښکاره کيږي لکه:

په پښتو کي: خورم ، ليکو ، لولو ، غورځوي ، وهي ، ځغلي او نور.

په سويډني کي: sova , springa , dricka , läsa , äta , skriva , gå او داسي نور.

مصدر Infinitiv : مصدر د فعل مبدا او اساس دئ. د مصدر علامه په سويډني ژبه کي att ده.

مصدر په پښتو کي: لکه خوړل ، پرېکول ، پرېکېدل ، ځغستل ، پرېولل ، تلل ، غورځول ، ليکل ، ببربدل ، ببرول ، بيدول ، بيدېدل او نور. په پښتو کي د مصدر په پای کي (ول) يا (يدل) راځي.

مصدر په سويډني کي: په سويډني ژبه کي د زياترو مصدرونو په پای کي ( a ) راځي خو د يو شمېر مصدرونو په پای کي بيا نور ږغ لرونکي توري راځي لکه:

| | |
|---|---|
| arbeta | کار کول |
| ringa | زنګ وهل |
| köpa | رانيول |
| sy | ګنډل |
| gå | تلل |
| bo | اوسېدل |

په سويډني ژبه کي فعل پر پنځو ګروپو وېشل کيږي او زياتره وختونه د فعل هر ګروپ په دې لاندي څلورو حالتو ښکاره کيږي لکه :

| Infinitiv | Presens | Preteritum | Supinum |
|---|---|---|---|
| 1- arbeta | arbetar | arbetade | arbetat |
| 2a - ringa | ringer | ringde | ringt |
| 2b – köpa | köper | köpte | köpt |
| 3 - sy | syr | sydde | sytt |
| 4- skriva | skriver | skrev | skrivit |
| dricka | dricker | drack | druckit |
| flyga | flyger | flög | flugit |
| 5 - gå | går | gick | gått |
| göra | gör | gjorde | gjort |

په سویډني ژبه کي د فعل هغه برخي ته د فعل تنه verbstam وايي چي تر هغه وروسته کوم بل توری پوري مښلي لکه ande, ning,else او نور ، په لاندي فعلونو کي يې و ګورئ:

1- baka ( stammen = infinitiven )

2 - stäng, läs ( stammen = infinitiven minus a )

3 – sy ( stammen = infinitiven )

4 – spring ( stammen = infinitiv minus a )

gå ( stammen = infinitiven )

د پورتنی جدول شرحه دا ډول ده:

لومړی مصدر Infinitiv : مصدر هغه وخت په يوه جمله کي راتلای سي چي تر مخه يې يو کومکي فعل لکه Kan , Ska او يا يو بل اصلي فعل چي د کومکي فعل په شان راغلئ وي لکه:

Han **kan** åka bil. — دی په موټر کي تلای سي

Du **ska** komma hem. — ته به کور ته راسې

په پورتنیو دوو جملو کي دوه کومکي فعلونه د Kan او Ska راغلي دي اوس په لاندي جملو کي و ګورئ چي ځیني اصلي فعلونه هم د کومکي فعلو په شان کار ور کوي:

Han **behöver** inte åka till Kabul. دی ضرورت نه لري چي کابل ته ولاړ سي

Vi **brukar** läsa tidning. موږ معمولا اخبار لولو

او یا

Jag **hörde** henne gråta. ما واورېده چي دا ژاړي

Vi **såg** henne springa. موږ دا ولیده چي ځغستل یې

Han **ber** oss vakna. دی زموږ څخه غوښتنه کوي چي موږ را ویښ سو

Hon **fortsätter** att läsa. دا لوستلو ته دوام ورکوي

مصدر په سویډني کي کله کله د اسم په شان راځي لکه:

**Springa** är kul. ځغستا ښه خوند کوي

کله کله د مصدر تر مخه یو Att هم راځي لکه:

**Att** springa är kul.

د مخه تر دې چي د Presens ، Preteritum او Supinum په هکله څه و وایو ښه به دا وي چي فعل په مختلفو زمانو کي و ګورو :

فعل په درو زمانو کي راځي لکه حال (اوس)، ماضي (تېره زمانه) او راتلونکې زمانه:

۱ ـ **حال** Presens : هغه زمانه ده چي یو فعل یا کار اوس کیږي لکه:

په پښتو کي:

زه د احمد څخه قلم اخلم.

موږ د دوی سره ښوونځي ته ځو.

موسی کالي مینځي.

د دې ورور کتاب لولي.

حال په سویډني ژبه کي په دغه ډول راځي لکه په پښتو ژبه کي. که پورتني جدول ته و ګورو په حال زمانه کي به ټوله هغه فعلونه راسي چي تر Presens لاندي لیکل سوي دي لکه:

| | |
|---|---|
| دی په ښوونځي کي کار کوي. | Han **arbetar** i skolan. |
| موږ خپل ښوونکي ته تلیفون کوو. | Vi **ringer** till vår lärare. |
| دوی یو موټر رانیسي | De **köper** en bil. |
| موږ کالي ګنډو | Vi **syr** kläder. |
| دا یو خط لیکي | Hon **skriver** ett brev. |
| زه ځغلم | Jag **springer**. |
| مرغان افریکا ته الوزي | Fåglarna **flyger** till Afrika. |
| دوی کور ته ځي | De **går** hem. |

جمله دوه ډوله ده چي یوې ته خبریه او بلي ته سوالیه جمله وایي

۱ ـ خبریه جمله: لکه

احمد د کابل څخه راغئ.

سدو د خپل پلار سره ولاړ.

ملالۍ به د مور سره ولاړه سي.

۲ ـ **سواليه جمله:** په پښتو ژبه کي سواليه جمله په خبرو کي د خبريې جملې په شان ده خو په ليکلو کي ډېر ځلي د (ايا) کلمه او په پای کي د سواليې علامه (؟) ور اچول کيږي لکه:

ايا احمد راغلئ دئ؟

ايا موږ تاته نه وه ويلي؟

په سويډني ژبه کي هم د پښتو ژبي په شان خبريه او سواليه جملې سته او د پښتو ژبي په شان ډېر ځلي په خبرو کي سواليه جمله د خبريه جملې په شان د اواز په واسطه ښکاره کوي. مګر په ليکنه کي (د جملې لومړی فعل) د جملې سر ته راولي او د جملې په پای کي (?) راولي لکه:

يادونه: د سويډني ژبي د جملې په سر کي چي کوم توری راځي نو به خاماخا لوی توری وي مه يې هېروئ.

| | |
|---|---|
| Arbetar han i skolan? | ايا دی په ښوونځي کي کار کوي؟ |
| Ringer vi till vår lärare? | ايا موږ خپل ښوونکي ته تليفون کوو؟ |
| Köper de en bil? | ايا دوی يو موټر رانيسي؟ |
| Syr vi kläder? | ايا موږ کالي ګنډو؟ |
| Skriver hon ett brev? | ايا دا يو خط ليکي؟ |
| Springer jag? | ايا زه ځغلم؟ |
| Flyger fåglarna till Afrika? | ايا مرغان افريکا ته الوزي؟ |
| Går de hem? | ايا دوی کورته ځي؟ |

۲ ـ ماضي : هغه زمانه ده چي یو کار په تېر سوي وخت کي سوئ وي او دا

زمانه پر درې ډوله ده لکه مطلقه ماضي ، قریبه (نژدې) ماضي او بعیده (لري) ماضي .

الف ـ مطلقه ماضي Preteritum : لکه

په پښتو کي :

دی کور ته راغئ .

موږ کابل ته ولاړو .

سلام لوست ولوست .

تاسي خپل ورور ته تلیفون و کړ .

| | |
|---|---|
| احمد په یوه ښوونځي کښي کار وکړ . | Ahmad arbetade på en skola. |
| موږ ځنګله ته ولاړو . | Vi gick till skogen. |
| ده چابک و ځغستل . | Han sprang fort. |
| ملالۍ خپل ورور ته تلیفون وکړ . | Malalai ringde sin bror. |
| یوه سړي کالي و ګنډل . | En man sydde kläder. |
| دې یو خط ولیکه . | Hon skrev ett brev. |
| ایا دوی پرون امریکا ته ولاړه ؟ | Flög de till USA igår? |
| ایا احمد په یوه ښوونځي کښي کار وکړ؟ | Arbetade Ahmad på en skola? |
| ایا موږ ځنګله ته ولاړو؟ | Gick vi till skogen? |
| ایا ده چابک و ځغستل ؟ | Sprang han fort? |
| ایا ملالۍ خپل ورور ته تلیفون وکړ ؟ | Ringde Malalai sin bror? |
| ایا یوه سړي کالي و ګنډل ؟ | Sydde en man kläder? |

Skrev hon ett brev? — ایا دې یو خط ولیکه؟

Flög de till USA igår? — ایا دوی پرون امریکا ته ولاړه ؟

ب ـ قریبه ماضي (نژدې تېره زمانه) Perfektum :

د دې د پاره چې د قریبې ماضي جملې جوړې کړو نو د فعل تر دریم حالت ( supinum ) د مخه د har کلمه راوړو لکه:

Jag **har arbetat** på en restaurang. — ما په یوه رستوران کې کار کړئ دئ.

Vi **har köpt** en bil. — موږ یو موټر را نیولئ دئ.

De **har bott** i Malmö i tre år. — دوی درې کاله په مالمو کې اوسېدلي دي.

Ahmad **har skrivit** ett brev. — احمد یو خط لیکلئ دئ.

Moosa **har gått** hem. — موسی کور ته تللئ دئ.

Du **har byggt** ett hus. — تا یو کور جوړ کړئ دئ.

د پورته جملو سوالیه جملې په لاندې ډول دي چې د جملې لومړی فعل یعني har د جملې سر ته راولو لکه:

**Har** jag arbetat på en restaurang? — ایا ما په یوه رستوران کې کار کړئ دئ ؟

**Har** vi köpt en bil? — ایا موږ په یوه رستوران کې کار کړئ دئ ؟

**Har** de bott i Malmö i tre år? — ایا دوی درې کاله په مالمو کې اوسېدلي دي ؟

**Har** Ahmad skrivit ett brev? — ایا احمد یو خط لیکلئ دئ ؟

**Har** Moosa gått hem? — ایا موسی کور ته تللئ دئ ؟

**Har** du byggt ett hus? — ایا تا یو کور جوړ کړئ دئ ؟

ج ـ بعیده (لیري) ماضي Pluskvamperfektum : د بعیدي ماضي د جملو

د جوړولو د پاره د فعل د دریم حالت supinum تر مخه د hade کلمه راولو لکه:

| | |
|---|---|
| موږ په یوه رستوران کي کار کړئ وو. | Vi **hade jobbat** på en restaurang. |
| ده خپل ورور ته تلیفون کړئ وو . | Han **hade ringt** till sin bror. |
| دوی زموږ څخه د مرستي غوښتنه کړې وه. | De **hade bett** oss om hjälp. |
| احمد یو خط لیکلئ وو. | Ahmad **hade skrivit** ett brev. |
| ته کور ته تللئ وې. | Du **hade gått** hem. |
| د دې ورور یو فلم لیدلئ وو. | Hennes bror **hade sett** en film. |

د پورتنیو جملو سوالیه جملې: په پوتنیو جملو کي لومړی فعل یعني Hade د جملې سر ته راولو لکه:

| | |
|---|---|
| ایا موږ په یوه رستوران کي کار کړئ وو ؟ | **Hade** vi jobbat på en restaurang? |
| ایا ده خپل ورور ته تلیفون کړئ وو ؟ | **Hade** han ringt till sin bror? |
| ایا دوی زموږ څخه د مرستي غوښتنه کړې وه ؟ | **Hade** de bett oss om hjälp? |
| ایا احمد یو خط لیکلئ وو ؟ | **Hade** Ahmad skrivit ett brev? |
| ایا ته کور ته تللئ وې ؟ | **Hade** du gått hem? |
| ایا د دې ورور یو فلم لیدلئ وو ؟ | **Hade** hennes bror sett en film? |

۳ ـ استقبال (راتلونکې زمانه) Futurum : په پښتو کي راتلونکې زمانه یا د (به) په مرسته جوړیږي او یا حال جملې ته د راتلونکي زمانې وخت ور اچوي لکه:

احمد به د کابل څخه سبا راسي.

احمد د کابل څخه سبا راځي.

پورتنۍ دواړي جملې د راتلونکي زمانې جملې دي. په سویډني ژبه کي هم راتلونکې زمانه د Ska , Skall او یا Kommer att په واسطه او یا د Presens جملې څخه د راتلونکي زمانې د یوه وخت د راوړو په واسطه جوړیږي لکه:

**الف ــ** د راتلونکي زمانې جوړول د ska او kommer att په واسطه :

د ska په واسطه:

Han **ska** arbeta på en restaurang. دی به په یوه رستوران کي کار وکي.

Ni **ska** ringa till henne. تاسي به و دې ته تلیفون وکړئ.

د پورتنیو جملو سوالیې داسي جوړیږي چي د ska کلمه د جملې سر ته راولو لکه:

**Ska** han arbeta på en restaurang? ایا دی به په یوه رستوران کي کار وکړئ؟

**Ska** ni ringa till henne ایا تاسي به دې ته تلیفون وکړئ ؟

د kommer att په واسطه:

Han **kommer att** arbeta på en restaurang.. دی به په یوه رستوران کي کار وکړي

Hon **kommer att** skriva ett brev. دا به یو خط ولیکي.

د پورتنیو جملو سوالیه جملې داسي جوړیږي چي د kommer کلمه د جملې په سر کي راولو لکه:

**Kommer** han att arbeta på en restaurang? ایا دی به په یوه رستوران کي کار وکي ؟

**Kommer** hon att skriva ett brev? ایا دا به یو خط و لیکي ؟

**ب ــ** کله چي کوم څه په راتلونکې زمانه کي کیږي او موږ یې په کوم بل ډول افاده کوو. دا کار دواړه په سویډني او پښتو ژبه کي د حال د فعل سره د راتلونکي

زمانې د يوه وخت په يو ځاى كولو سره كيږي لكه:

په پښتو كي:

دى سبا كابل ته ځي.

دا په راتلونكي كال كي جرمني ته ځي.

پورته جملې كه د راتلونكي زمانې په قانون جوړي سي نو بايد د (به) كلمه پكښې راسي. مګر په دغه حالت كي هم د راتلونكي زمانې مفهوم ځني اخيستل كيږي، په سويډني ژبه كي هم په دغه شان ده لكه:

په سويډني ژبه كي:

| | |
|---|---|
| موږ سبا په سرويس كي ځو. | Vi åker buss i morgon. |
| دوى راتلونكې اونۍ ازموينه لري. | De har prov nästa vecka. |

په پورتنيو دوو جملو كي د åker او har فعلونه د حال زمانې فعلونه دي، كه چيري په لومړۍ جمله كي د i morgon او په دوهمه جمله كي د nästa vecka كلمې نه واى راغلي نو به دغو دواړو جملو د حال زمانه ښكاره كړې واى.

د پورتنيو جملو سواليه جملې د پخوا په شان هم جوړيږي چي د جملو فعلونه د جملو سر ته راوړو لكه:

| | |
|---|---|
| ايا موږ سبا په سرويس كي ځو؟ | Åker vi buss i morgon? |
| ايا دوى راتلونكې اونۍ ازموينه لري؟ | Har de prov nästa vecka? |

## الف ـ futurum preteritum ( راتلونكې مطلقه ماضي ):

د skulle سره مصدر infinitiv يو ځاي راولو لكه:

Hon **skulle ringa**, när vi kom. دې به مورږته تليفون کاوه کله چي موږ راغلو .

ب ــ konditionalis ( شرطي ) :

Jag **skulle köpa** en bil, om jag hade pengar.

ما به موټر رانيولئ وای که ما پيسې درلودای.

٤ ــ Imperativ ( امر ) :

امر د **فعل** د اول ګروپ د پاره د هغه **فعل** د مصدر infinitiv **حالت** دئ لکه:

| **Infinitiv** | **imperativ** |
|---|---|
| baka | baka |
| tala | tala |
| arbeta | arbeta |

امر په نورو ټولو ګروپو کي چي د مصدر په پای کي يې a راغلې وي ، د a په د منځه وړلو سره جوړيږي او د هغه نورو ټولو فعلونو امر پخپله د مصدر څخه جوړيږي لکه:

| **Infinitiv** | **imperativ** |
|---|---|
| ring/a | ring |
| köp/a | köp |
| sy/ | sy |
| bo/ | bo |
| skriv/a | skriv |
| spring/a | spring |
| gå/ | gå |

## **لازمي او متعدي فعل** Transitiva och intransitiva verb:

Transitiva verb **متعدي فعل**: **هغه فعل ته وايي چي فاعل** او **مفعول** دواړه و لري.

Intransitiva verb **لازمي فعل**: هغه **فعل** دئ چي **مفعول** نه لري. دلته به يې د پښتو او سويډني ژبو د دواړو فعلونو مصدرونه و لولئ:

په پښتو کي لکه:

**د متعدي فعل** (Transitiva ver) **مصدرونه**: بيدول ، ژړول ، ځنډول ، خرابول او نور

**د لازمي فعل** (Intransitiva verb) **مصدرونه**: بيدېدل (ويدېدل) ، ژړېدل ، ځنډېدل ، خرابېدل او نور.

دلته به د پښتو يو څو جملې وګورو:

| | |
|---|---|
| مور خپل ماشوم بيدوي. | متعدي |
| ماشوم بيديږي. | لازمي |
| احمد يو ماشوم ژړوي. | متعدي |
| د احمد ماشوم ژاړي. | لازمي |

په سويډني کي لکه:

| **Transitiva verb** | **intransitiva verb** |
|---|---|
| lägga | ligga |
| sätta | sitta |
| kyla | kallna |
| förmörka | mörka |
| fördröja | dröja |
| fälla | falla |

| | |
|---|---|
| döda | dö |
| bränna | brinna |
| röka | ryka |
| släcka | slockna |
| spräcka | spricka |
| ställa | stå |
| sänka | sjunka |
| söva | sova, somna |
| trötta | tröttna |
| väcka | vaka, vakna |
| tysta | tystna |

Ex : Hon lägger boken på bordet. tr

دا آکتاب پر مېز ایږدي.

Boken ligger på bordet. itr

آ کتاب پر مېز پروت دئ.

Han ställer cykeln på gården. tr

دی آ بایسکل په باغچه کي دروي.

Cykeln står på gården. itr

آ بایسکل په باغچه کي ولاړ دئ.

Han sätter sig i soffan. tr

دی په آ کوچ کي کښېني.

Han sitter i soffan. itr

دی په آ کوچ کي ناست دئ.

Han sätter blomman i vatten. tr

دی آ گل په اوبو کي ایږدي.

Blomman står i vatten. itr

آ ګل په اوبو کي ولاړ دئ.

**Presens particip** او **Perfekt particip** : سړی کولای سي چي د فعل د صفت شکل يې و بولي، پدې چي سړی يې اکثره وختونه د صفت په شکل په کاروړي. دلته به د هر يوه په باره کي معلومات تر لاسه کړو.

د Presens particip د جوړولو لاري:

الف ـ د فعل د تنې ( verbstam ) څخه چي پر اخري رږغ لــرونکي تــوري يې خج (فشار) راغلئ وي د *ende* په زياتولو سره جوړيږي. يعني دلته د فعل د دريم او پنځم ګروپ څخه کار اخلو لکه:

Ex : tro**ende**
gå**ende**

يادونه: verbets stam فعل تنه: د فعل د کلمې هغه برخه ده چي پساوند يا کوم بل توری يا توري پوري منبلي لکه:

1- baka ( stammen = infinitiv)
2- stäng ( stammen = infinitiv minus –a )
läs ” ”
3- sy ( stammen = infinitiv )
4- spring ( stammen = infinitiv minus –a )
gå ” ”

ب ـ د فعل د تنې ( verbstam ) په پای کې د *ande* د زیاتولو له لارې جوړېږي .

دا د فعل I, II a, II b, IV ګروپو څخه جوړېږي لکه :

Ex : tal**ande** I

lek**ande** II

sjung**ande** IV

د Presens particip استعمالول :

الف ـ د صفت په توګه لکه :

Ex : ett **lekande** barn

یو لوبي کوونکی کوچنی

ett **leende** natur

یو خندان طبعت

ب ـ د اسم په توګه لکه :

Ex : ett **förtroende**

یو اعتماد

ett **påstående**

یوه بیانیه

en **studerande**

یو محصل

en **gående**

یو تلونکی (روان)

ج ـ د قید په توګه لکه :

Ex : Hon var **strålande** vacker.

دا د شغلې په شان ښکلې وه .

Hon bor **fortfarande** i Göteborg.

دا تر اوسه لا په يتبوري کي ژوند کوي.

د ـ د komma او gå تر **فعل** وروسته لکه:

Ex : Hon kom **cyklande.**

دا پر بايسکل راغله.

Hon kommer **cyklande**.

دا پر بايسکل راځي.

De går **sjungande**.

دوی په غزلو ويلو ځي.

Hon gick **leende** genom livet.

دا په ټوله ژوند کي خندانه وه.

د Perfekt particip جوړول د **فعل** د دريم حالت supinumformen **څخه**:

| | Perfektum<br>*Har* + supenum | Predikativ ställning | Attributiv ställning<br>Obestämd form | <br>Bestämd form |
|---|---|---|---|---|
| I | Han har måla**t** stolen. | Stolen är måla**d**.<br>Huset är måla**t**.<br>Stolarna är måla**de**. | en måla**d** stol<br>ett måla**t** hus<br>två måla**de** stolar | den måla**de** stolen<br>det måla**de** huset<br>de måla**de** stolarna |
| IIa | Hon har stäng**t** fönstret | Dörren är stäng**d**.<br>Fönstret är stäng**t**.<br>Dörrarna är stäng**da**. | en stäng**d** dörr<br>ett stäng**t** fönster<br>två stäng**da** dörrar | den stäng**da** fönstret<br>det stäm**da** fönstret<br>de stäng**da** dörrarna |
| IIb | De har köp**t** bilarna. | Bilen är köp**t**.<br>Huset är köp**t**.<br>Bilarna är köp**ta**. | en köp**t** bil<br>ett köp**t** hus<br>två köp**ta** bilar | den köp**ta** bilen<br>det köp**ta** huset<br>de köp**ta** bilarna |
| III | Hon har sytt klänningarna. | Klänningen är sy**dd**.<br>Skärpet är sy**tt**.<br>Skärpen är sy**dda**. | en sy**dd** klänning.<br>ett sy**tt** skärp<br>två sy**dda** skärp | den sy**dda** klänningen<br>det sy**dda** skärpet<br>de sy**dda** skärpen |
| IV | Jag har skrivi**t** brevet. | Boken är skriv**en**.<br>Brevet är skriv**et**.<br>Böckerna är skriv**na**. | en skriv**en** bok<br>ett skriv**et** brev<br>två skriv**na** böcker | den skriv**na** boken<br>det skriv**na** brevet<br>de skriv**na** böckerna |
| | De har missförstå**tt** boken | Boken är missförstå**dd**.<br>Barnet är missförstå**tt**.<br>Barnen är missförstå**dda**. | en missförstå**dd** bok<br>ett missförstå**tt** barn<br>tva missförstådda barn | den missförstå**dda** boken<br>det missförstå**dda** barnet<br>de missförståd**da** böckerna |
| Oreg. | Vi har gjor**t** läxorna | Läxan är gjor**d**.<br>Arbetet är gjor**t**.<br>Läxorna är gjor**da**. | en välgjor**d** läxa<br>ett välgjor**t** arbete<br>två välgjor**da** läxor | den välgjor**da** läxan<br>det välgjor**da** arbetet<br>de välgjor**da** läxorna |

## معروف فعل او مجهول فعل Passiv form och aktivum form:

### معروف فعل Aktiv form:

هغه فعل ته ويل کيږي چي يو ښکاره فاعل و لري لکه:

احمد زه و ليدم. دلته احمد فاعل، زه مفعول او وليدم فعل دئ.

Ahmad har köpt en bil.

په لوړه جمله کي Ahmad فاعل bil مفعول او har köpt معروف فعل دئ او جمله يې aktiv form ده.

### مجهول فعل Passiv form:

دا هغه فعل دئ چي په جمله کي يې مفعول ډېر ښکاره رول و لري، که فاعل په جمله کي وي او که نه وي. دغه په دوو ډولو جوړيږي لکه:

### لومړی د فعل په پای کي د s په زياتولو سره لکه:

| | | Presens | Preteritum | Perfektum | Pluskvam - Perfektum |
|---|---|---|---|---|---|
| 1 | Dörren<br>fönstret<br>dörrarna | öppnas<br>”<br>” | öppnades<br>”<br>” | har öppnats<br>”<br>” | hade öppnats<br>”<br>” |
| 2a | dörren<br>fönstret<br>dörrarna | stängs<br>”<br>” | stängdes<br>”<br>” | har stängts<br>”<br>” | hade stängts<br>”<br>” |
| 2b | Boken<br>häftet<br>böckerna | köps<br>”<br>” | köptes<br>”<br>” | har köpts<br>”<br>” | hade köpts<br>”<br>” |
| 3 | blusen<br>skäpet<br>blusarna | sys<br>”<br>” | syddes<br>”<br>” | har sytts<br>”<br>” | hade sytts<br>”<br>” |
| 4 | boken<br>brevet<br>böckerna | skrivs<br>”<br>” | Skrevs<br>”<br>” | har skrivits<br>”<br>” | hade skrivits<br>”<br>” |

یادونه: هغه فعلونه چي په ګروپ 2b پوري اړه لري او په پای کي يې د مصدر تر a د مخه s راغلئ وي د passiv په وخت کي په حال زمانه کي es اخلي لکه läs/a چي läses کيږي.

هېر يې نه کئ چي د کومکي فعلونو د استعمال په وخت کي د مصدر حالتونه په کار لويږي لکه:

Ex : Boken kan **lämnas** på biblioteket.

کتاب و کتابخانې ته ور کول کېدای سي.

Fönstret ska **stängas** på natten.

کړکۍ به د شپې و تړل سي.

Passiv کله کله په داسي وخت کي په کار لويږي چي سړی نه پوهيږي چي يو کار د چا له خوا کيږي او يا د فاعل سره د سړي علاقه نه وي لکه:

Ex : Dörren **öppnas** klockan nio.

دروازه پر نهه بجې خلاصيږي.

کېدای سي چي passiv پداسي ځای کي په کار واچوو کوم چي ښکاره کي چي کوم کار د چا له خوا کيږي لکه:

Ex : Dörren **öppnas** av vakten.

دروازه د پيره دار له خوا خلاصيږي.

# Adverb قید (د تمیز کلمه)

قید هغه کلمه ده چي پر فعل ، صفت ، قید او یا یوه جمله ( sats ) تاثیر کوي لکه:

Ex : Han kom **sent** till tåget.

دی ریل ته ناوخته راغئ.

په لوړه جمله کي sent قید دئ چي د kom پر فعل تاثیر کوي.

Han är **ganska** trevlig.

دی یو څه ښه سړی دئ

ganska قید دئ چي د trevlig پر صفت یې تاثیر کړئ دئ.

Hon kom **ovanligt tidigt** till sammanträdet.

دا مجلس ته غیر عادي وختي راغله.

په لوړه جمله کي دوه قیدونه موجود دي لکه: ovanligt او tidigt قیدونه دي ،

tidigt د kom د فعل د پاره قید دئ او ovanligt د tidigt د قید د پاره قید دئ.

Han dricker **vanligen** öl till maten.

دی معمولا د ډوډۍ سره بیر څښي.

په پورتنۍ جمله کي vanligen د sats قید دئ.

یادونه: کېدای سي چي قید د شمېر پر کلمو باندي هم تاثیر و کي لکه:

Ex : Det var **omkring ( cirka )** 2000 människor på ishockey matchen.

د یخي د هاکي په میچ کي تقریبا ۲۰۰۰ کسان وه.

يو شمېر عادي قيدونه:

I ــ ساده قيدونه:

| | | | |
|---|---|---|---|
| a- aldrig | nu | snart | |
| alltid | ibland | sällan | |
| genast | ofta | redan | |

| | | | |
|---|---|---|---|
| b- här | hit | borta | bort |
| där | dit | hemma | hem |
| inne | in | uppe | upp |
| ute | ut | nere | ner, ned |

c- inte
ej
icke

d- ju
nog
dock
emellertid m. fl

ــ II ګډ (مرکب) قيدونه: هغه قيدونه دي چې د

enkelt adverb + preposition eller adverb څخه جوړ سوي وي لکه:

a- adverb + ifrån

| | |
|---|---|
| härifrån | = ifrån här (= den här plats ) |
| norrifrån | = ifrån norr |
| varifrån | = ifrån var (= vilken plats ) |

b- adverb + åt

| | |
|---|---|
| häråt | =till, mot |
| hitåt | = i riktning mot |

c- adverb + ut

| | |
|---|---|
| norrut | =till, mot norr |
| söderut | =till, mot söder |
| västerut | =till, mot väster |
| österut | =till, mot öster |

d- adverb + tills

| | |
|---|---|
| hittills | =till den här tidpunkten |
| dittills | =till den där tidpunkten |

| **Relativa adverb** | **Interrogativa adverb** | **Demonstrativa adverb** |
|---|---|---|
| موصول قید | د پوښتني قید | اشاري قید |
| där | var | där |
| dit | vart | dit |
| varifrån | varifrån | varifrån |
| varför | varför | varför |

Ex : **Varifrån** ( interrogativa adverb ) kommer du?

ته د کوم ځای یې ؟

Den stad **varifrån** ( relativa adverb = som…ifrån ) jag kommer ligger i norra Sverige.

دا ښار د کوم ځخه چي زه یم په شمالي سویډن کي پروت .

Anders kommer också **därifrån**.

اندرس هم د هغه ځای دئ .

**Varför** ( interrogativa adverb ) kom John inte till sammanträdet?

یوون ولي مجلس ته را نه غلئ ؟

Han var mycket upptagen, **varför** ( relativa adverb = av vilken orsak ) han inte kunde komma.

دی ډېر مشغول وو ، ځکه دی نه سوای راتلای .

Han var mycket upptagen. **Därför** ( demonstrativa adverb = av den orsak ) kunde han inte komma.

دی ډېر مشغول وو ، ځکه دی نه سوای راتلای .

د adverb د جوړولو مختلفي لاري :

الف ـ د adverb جوړول د صفت adjektiv **څخه** :

د صفت په پای کي د t په زیاتولو سره لکه :

Ex : Studenterna är otroligt intelligenta.

محصلان بې باوره ذکي دي .

Han gick förvånansvärt fort.

دی حیرانوونکی ژر ولاړ .

Kom inte för sent till lektionen.

درس ته ناوخته مه راځه .

1- Hon fick **ovanligt vackra** blommor av sin fästman.

دې د خپل سړي څخه غیر عادي ښکلي ګلان په لاس راوړه .

2- Hon fick **ovanliga, vackra** blommor av sin fästman.

د پورتنۍ جملې په شان معنی لري .

په لومړۍ جمله کي ovanligt قید دئ د vackra د صفت د پاره .

په دوهمه جمله کي ovanliga او vackra دواړه صفتونه دي.

ب ـ presens particip او perfekt particip د قيد په شان راځي لکه:

Ex : Det är strål**ande** vackert väder idag.

نن ډېره ښکلې هوا ده.

Han vägrade bestäm**t** att skriva på pappret.

ده په قاطع ډول و نه منله چي کاغذ لاسليک کړي.

ج ـ هغه صفتونه چي په *lig* سره ختم سوي وي په لاندي ډولونو سره قيد ځني جوړيږي لکه :

۱ ـ د صفت په پای کي *t* ور اچوو لکه:

Han talar tydlig**t**.

دی واضح خبري کوي.

۲ ـ د *ing* له لاري لکه:

Har ni mölig**en** färska räkor?

ممکنه ده چي تاسي به تازه ريکور لرئ؟

Han kommer trolig**en** med nästa tåg.

فکر کيږي چي دی په دا بل ريل کي راځي.

Han talar tydlig**en** med någon.

معلومداره دی د کوم چا سره خبري کوي.

۳ ـ د *t+vis* په زياتولو سره لکه :

Han kommer vanlig**tvis** försent.

دی معمولا ناوخته راځي.

Kan ni möjlig**tvis** hjälpa mig med väskor?

ممکنه ده چي زما سره د بکسو مرسته و کړې؟

هغه قیدونه چي سکون (ځای پر ځای والی) او حرکت ښکاره کوي:

| ساکن قیدونه | حرکتي قیدونه |
|---|---|
| **Befintlighet** | **rörelse** |
| var ? | vart? |
| här | hit |
| där | dit |
| inne | in |
| ute | ut |
| uppe | upp |
| nere | ner |
| hemma | hem |
| borta | bort |
| framme | fram |

د پورته قیدونو به یو څو مثاله راوړو: دغه دواړه ډوله قیدونه چي په سویډني کي جلا جلا معنی ور کوي خو په پښتو کي یو شان معنی ور کوي لکه:

Han står **där**.

دی هلته ولاړ دئ.

Han går **dit**.

دی هلته ځي.

په لومړي مثال کي د دې سببه där راغلئ دئ چي دی ولاړ دئ ځکه چي دی د یوه ځایه څخه بل ځای ته حرکت نه کوي مګر په دوهمه جمله کي dit راغلئ دئ ځکه چي دی د یوه ځای څخه بل ځای ته ځي یعني حرکت کوي.

نور مثالونه:

Eva  är **hemma**.

اېوا کور ده.

Eva  kommer **hem**.

اېوا کور ته راځي.

Ola bor **här**.

اولا دلته اوسيږي.

Ola flyttar **hit**.

اولا دلته را کډه کيږي.

# Konjunktioner د عطف (وصل) کلمه

Konjunktion یا د عطف (وصل) کلمه هغه کلمه ده چي دوه اسمونه یا په یوه عبارت کي دوې جملې سره یو ځای کوي لکه :

زمری او هوسۍ پر یوه ګودر اوبه چیښي.

نجوني راغلې مګر هلکان را نه غله.

په لومړۍ جمله کي (او) د وصل کلمه ده چي زمری د هوسۍ سره یو ځای کوي.

په دوهمه جمله کي (مګر ) د وصل توری دئ.

په پښتو او سویډني کي د وصل توري دوه ډوله دي چي یو یې

- مساوي د وصل توری Samordnande konjunktion
- بل یې تابع د وصل توری underordnande kojunktin دئ.

۱ ـ **Samordnande konjunktioner** مساوي د وصل کلمه: دا هغه د وصل کلمه ده چي دوې مستقلي جملې huvudsatser سره یوځای کوي لکه:

och Hon sjunger **och** dansar.

دا غزل وایي او نڅا کوي.

Om du vill **och** det inte regnar, åker vi **och** badar i morgon.

که ته غواړې اوکه باران نه اورېدئ، سبا ځو او لمبېږو.

samt Eleverna uppmanas att till lektionen medtaga läroböcker **samt** papper.

زده کوونکو ته خبر ور کول کیږي چي د درس د پاره د زدکړې کتابونه او کاغذ ور سره راوړي.

samt لکه och د وصل توری دئ خو samt یوازي په لیکلو کي په کار لویږي .

<u>eller</u> Ska du **eller** jag åka dit.

یا به ته یا به زه هلته ولاړ سم ؟

<u>varken … eller</u>

Han kommer **varken** med böcker **eller** med papper.

ده نه کتابونه او نه کاغذ ور سره راوړل .

**Varken** han **eller** hans fru ville följa med.

نه ده او نه د ده مېرمني غوښتل چي ور سره ولاړ سي .

پورتنۍ د وصل کلمه ( varken… eller ) د نفي ( نه کولو ) په وخت کي را ځي .

<u>vare sig … eller</u>

Han drack inte **vare sig** te **eller** kaffe.

ده نه چای و چیښل او نه یې کافي .

Han hade aldrig varit **vare sig** i Italien **eller** Spanien.

دی هیڅ کله نه هسپانیې ته تللئ وو او نه ایټالیې ته .

<u>Antingen … eller</u>

Hon vill **antingen** åka till Malmö **eller** till Stockholm.

دی غواړي چي نه مالمو ته ولاړ سي او نه ستوکهولم ته .

<u>både … och</u>

**Både** du **och** jag är bjudna på festen.

ته او زه دواړه مېلمستیا ته خبر یو .

<u>men</u> Han hade bil **men** kunde inte köra.

ده موټر درلودئ مګر چلولای یې نه سوای .

<u>utan</u> Han är inte fattig **utan** rik.

دی مسکین نه دئ بلکي خان دئ .

Han kunde inte spela **utan** måste gå hem.

ده بازي نه سوای کولای بلکي باید کور ته تللئ وای .

för Han kan inte komma **för** han är sjuk.

دی نه سي کولای چي راسي ځکه چي دی ناروغه دئ.

ty

ty او för یو شی دي خو ty په خبرو کي نه راځي بلکي یوازي په لیکنه کي راځي.

## ۲ ـ Underordnande konjunktioer تابع د وصل کلمې: دا هغه د

وصل کلمې دي چي یوه تابع جمله د یوې مساوي جملې سره منښلوي یا یو bisats او یو huvudsats سره یو ځای کوي لکه:

att Han säger **att** han är sjuk.

دی وایي چي دی ناروغه دئ.

genom att Han klarade examen **genom att** studera mycket.

دی د ډیرو لوستلو له لاري په ازموینه کي بریالی سو .

utan att Han gick **utan att** säga adjo.

دی ولاړ ببله دې څخه چي خدای په اماني وکړي.

då, när **Då/När** klockan slog sju, började festen.

کله چي اوه بجې سوې مېلمستیا پیل سوه.

medan **Medan** du äter tittar jag på TV.

پدې وخت کي چي ته خورک کوې زه تې وي ته ګورم.

sedan Jag gick hem sedan jag hade varit på bio.

تر هغه وروسته چي زه په سېنما کي وم زه کور ته ولاړم.

Jag går hem **sedan** jag har ätit.

تر هغه وروسته چي ما ډوډۍ خوړلې ده زه کور ته ځم.

tills Vänta på mig **tills** jag kommer.

ما ته و درېږه تر څو زه راځم.

förrän Han gick inte **förrän** jag kom.

دی ولا نه ړئ دمخه تر دې چي زه راسم.

förrän د منفي جملې د پاره راځي.

innan Jag vill träffa henne **innan** jag åker på semester.

زه غواړم چي دا ووینم د مخه تر دې چي زه په رخصتي ولاړ سم.

just som Det ringde på dörren **just som** jag skulle bada.

فقط چي زه به لمبېدلم د دروازې زنګ ووهل سو.

så länge som Jag väntade **så länge ( som )** jag kunde.

ما دومره انتظار و ایست څومره چي مي کولای سوای.

så snart som Han kom **så snart ( som )** han kunde.

دی داسي ژر راغئ څومره ژر چي یې کولای سوای.

så ofta som Kom **så ofta ( som )** du kan.

دومر ډېر راځه څومره چي کولای سې.

som, liksom Han springer **lika** fort **som** jag.

دی دومره تېز ځغلي لکه زه.

Han är mycket omtyckt **som** lärare.

دی د ښوونکي په شان پر خلکو ډېر ګران دئ.

än Han springer fortare **än** jag.

دی تر ما تېز ځغلي.

ju … desto **Ju** mer du äter **desto** tjockare blir du.

هر څومره چي ته ډېر خوري هغومره ډېر چاغېږې.

så att Han cyklade **så** fort **att** jag inte hann med.

ده دومره تېز بایسکل چلاوه چي زه نه سوای پسې رسېدلای.

Jag var **så** trött **att** jag genast somnade.

زه دومره ستومانه وم چي زه دستي بیده سوم.

för att Han reste sig **för att** se bättre.

دی ولاړ سو د دې د پاره چي ښه ویني.

Han reste sig **för att** han skulle se bättre .

دی ولاړ سو د دې دپاره چي ده ښه لیدلي وای.

اکثره وختونه تر för att وروسته مصدر یا skulle, ska راځي.

eftersom **Eftersom** klockan är mycket måste vi gå hem.

څکه چي ډیري بجې دي موږ باید کور ته ولاړ سو.

därför att Han kom inte **därför att** han är sjuk.

دی را نه غئ څکه چي دی ناروغه دئ.

emedan **Emedan** det regnar kan vi inte gå.

په دغه وخت کي چي باران اوري موږ نه سو تلای.

om, ifall **Om/Ifall** det regnar i morgon åker vi inte.

که سبا باران اوریږي موږ نه ځو.

fast, fastän **Fastän** hon var sjuk gick hon och arbetade.

د دې سببه چي دا ناروغه وه دا ولا نه ړه او کار یې و نه کړ.

trots att **Trots att** läkarna varnade honom fortsatte han röka.

سرببره پر دې چي ډاکترانو ده ته اخطار ور کړ ده سګریټ څکولو ته دوام ور کړ.

även om — **Även om** det blir dålig väder, åker vi.

حتی که هوا خرابه هم وي ، ځو .

om — Han frågar **om** jag kommer.

دی پوښتنه کوي چي که زه (ور ، را ) ځم.

sedan — Han talade bra engelska, **sedan** han hade varit i England.

ده تر هغه وروسته چي انګلستان ته تللئ وو، ښې انګليسي خبري کولې .

يادونه: مستقله جمله Huvudsats او تابع جمله Bisats :

۱ ـ مستقله جمله Huvudsats :

هغه جمله ده چي په ځانګړې توګه راځي ، اورېدونکئ پوره مطلب ځني اخلي او د بلي جملې انتظار نه کوي. کېدای سي چي مستقله جمله خبريه ، سواليه يا ندايه وي لکه:

Exempel :

| | |
|---|---|
| Påstående | Han kommer nu. |
| Fråga | Kommer han nu? |
| Uppmaning | Kom nu! |

۲ ـ تابع جمله Bisats :

هغه جمله ده چي د يوې مستقلي جملې سره تړلې وي ، يعني تابع جمله په يوازنۍ توګه وجود نه لري. يا په بل عبارت ويلای سو چي تابع جمله د مستقلي جملې يو برخه ده يعني د مستقلي جملې يو ډول تشريح يا تعين کوونکې ده .

Bisats په Underordnande konjunktioner شروع کيږي لکه: په لاندي جملو کي تر Bisats لاندي خط کش سوئ دئ

Exempel:

När Sara kom, gick vi på bio.

کله چي سارا راغله موږ سېنما ته ولاړو .

Hon kom hem, för att hämta pengar.

دا کورته راغله د دې د پاره چي پیسې واخلي.

# د جر (ربط) کلمه Preposition

د جر توری د رابطې د توري په نامه هم یادیږي. دا کلمه د خپلي اصلي کلمې (چي معمولا اسم، یو ضمیر چي د مفعول حالت ولري یا یو مصدر وي) تر مخه راځي او رابطه یې په جمله کي د خپلي اصلي کلمې سره ښکاره کوي لکه :

Boken ligger **på** bordet.

پدې ځای کي på د ربط کلمه ده چي د کتاب رابطه د مېز سره ښکاره کوي.

په پښتو کي د جر توري :

له، په، پر، تر، سره، څخه، و، پوري، لاندي، باندي، سره، راهیسي او نور.

مثال یې په پښتو کي:

احمد له خپل ورور سره ښوونځي ته ولاړ.

ملالۍ په قلم لیک لیکي.

په سویډني کي:

av, för, från, bakom, bland, efter, i, hos, mot, på, till, åt, vid…

د جر یا ربط کلمې په سویډني ژبه کي درې ډوله دي لکه:

۱ـ ساده

۲ـ مرکبې

۳ـ مشتقي (د فعل، اسم یا صفت څخه جوړي سوي).

لومړی- ساده د جر توري (ساده د ربط کلمې): هغه دي چي يوه کلمه وي لکه

*av, i, på, efter, från…*

*<u>av</u>*

الف-

__ Tavlan är målad **av** min bror.

آ تابلو زما ورور رسم کړې ده.

__ Stolan är **av** trä.

آ چوکۍ د لرګي ده.

__ Hon skakade **av** rädsla.

دا د ډاره و رېږدېده.

__ Han dog **av** denna sjukdom.

دی د دغي ناروغۍ څخه مړ سو.

__ Hon var röd **av** ilska.

دا د قهره څخه سره وه.

__ Han blev trött **av** den långa promenaden.

دی د آ ډېر اوږده پیاده تګ څخه ستړئ سو.

ب - *av* تر ځینو صفتونو وروسته راځي لکه:

__ Det var snällt **av** dig att komma.

دا ستا مهرباني وه چي راغلې.

__ Hon är intresserad **av** konst.

دا د هنر (ارت) علاقه منده ده.

ج - *av* تر ځینو فعلونو وروسته راځي لکه:

__ Läxan bestod **av** två sidor.

کورنی کار دوه مخه وو.

__ Jag köpte boken **av** henne.

ما کتاب د دې ښځه رانیوئ.

د ـ *av* تر یو شمېر نومونو د مخه راځي لکه:

__ Jag läste brevet **av** misstag.

ما په غلطي کي مکتوب و لوست.

*bakom*

__ Han sitter **bakom** dig.

دی ستا تر شا ناست دئ.

*bland*

__ Min bil står **bland** de andra bilarna på parkeringsplatsen.

زما موټر د آ نورو موټرانو په منځ (جمله) کي د موټرانو په تم ځای کي ولاړ دئ.

او یا داسي هم ویل کیږي لکه:

__ bland annat ( = bl. a. )

د هغه جملې څخه

__ bland andra ( = bl. a. )

د هغو د جملې څخه

*enligt*

__ **Enligt** min åsikt är detta en god ide.

زما په نظر دا یوه ډېره ښه نظریه ده.

*efter*

الف- *efter* د ځای د پاره لکه:

__ Bilarna körde **efter** bussen.

موټران په سرویس پسې ولاړه (تله) .

ب- *efter* د وخت د پاره لکه:

__ Kom **efter** klockan tre!

تر درو بجو وروسته راسه !

ج- *efter* تر ځينو فعلونو وروسته راځي لکه:

__ Jag har frågat **efter** dig.

ما په تا پسې پوښتنه کړېده.

*framför*

الف- *framför* د ځای د پاره لکه:

__ Han står **framför** oss.

دی زموږ په مخ کي ولاړ دئ.

ب- *framför* په نورو حالتو کي لکه:

__ **Framför** allt ska ni sköta er hälsa.

تاسي به تر ټولو دمخه خپله روغتيا وساتئ.

__ Jag föredrar kaffe **framför** te.

زه تر چايو کافي خوښوم.

*från*

__ Det här tyget är **från** Kina.

دغه ټوکر د چين دئ.

__ Han kommer **från** Tyskland.

دی د جرمني دئ.

__ Vi fick ett brev **från** vår mor.

موږ د خپلي مور لیک په لاس راوړ.

__ Bordet är **från** 1700 talet.

آ مېز د اوولسمي پېړی دئ.

__ Avstå **från** att röka – lev länge!

سګریټ مه څکوه۔ ډېر ژوند وکړه!

*för*

الف۔ *för* تر ځینو نومونو وروسته لګه :

__ Hennes intresse **för** konst är stort.

د دې علاقه د آرټ سره ډېره ده.

ب۔ *för* تر ځینو صفتونو وروسته لګه:

__ Hon är rädd **för** ormar.

دا د مارانو څخه ډاریږي.

__ Han var orolig **för** oss.

دا زموږ په هکله نا ارامه وه.

__ De är kända **för** sitt goda humör.

دوی په خپل ښه خوی مشهوره دي.

__ Mannen är misstänkt **för** sabotaget.

آ سړی د ضرر رسولو تر اشتباه لاندي دئ.

__ Läxan var för lätt **för** dem.

کورنی کار دوی ته ډېر اسانه وو.

__ Det är bra **för** honom att vila.

د ده د پاره ښه ده چي استراحت وکړي.

__ Det är typiskt **för** henne att alltid säga emot.

دا د دې عادت دئ چي همېشه پر خلاف خبري کوي .

ج- *för* تر ځيني فعلونو وروسته

__ Jag ska berätta **för** henne.

زه به دې ته بيان و کړم.

__ Vi oroade oss **för** dig.

موږ ستا په هکله نا ارامي کوله.

__ Han presenterade sig **för** mig.

ده ځان ما ته را معرفي کړ.

__ Vi råkade ut **för** en olycka.

موږ د يوې بد بختۍ (بدي پېښي) سره مخامخ سولو .

__ Jag varnar dig **för** honom.

زه تا ته د ده سره د پام کولو خبر در کوم.

__ Jag intresserar mig **för** konst.

زه د آرت سره دلچسپي لرم.

*föreföre*

__ Han gick **före** mig och visade vägen.

دی تر ما د مخه تئ او لار يې را ښودله.

__ Hon gick hem **före** klockan tre idag.

دا نن تر درو بجو د مخه کور ته ولاړه.

__ De är **före** sin tid på detta område.

دوی په دې برخه کي تر خپل وخت د مخه دي .

یادونه : före او innan که څه هم په پښتو کي یوه معنی لري مګر före یو
preposition دئ او innan یو konjunktion دئ .

## *genom*

__ De körde **genom** staden.

دوی د ښار د لاري موټر و چلاوه .

__ **Genom** att ligga till sängs en vecka blev han frisk igen.

د دې لاري څخه چي دی یوه اونۍ په کټ کي پرېوت بیرته جوړ سو .

## *hos*

__ Han bor **hos** sin syster.

دی د خپلي خور سره اوسیږي .

__ **Hos** Pär finner man en del exempel på dialektala uttryck.

په پیر کي سړی د لهجوي خبرو یوه برخه مثالونه مومي .

## *i*

الف ـ *i* د وخت د پاره په لاندي ډولو په کار لویږي :

د وخت د اوږدوالي د پاره . یعني د hur länge د پوښتني د جواب د پاره لکه :

__ Hon har bott här **i** två år.

دا دلته دوه کاله اوسېدلې ده .

کېدای سي چي په پورتنۍ جمله کي i هیڅ را نه وړو لکه :

__ Hon har bott här två år.

دا دلته دوه کاله اوسېدلې ده .

ب۔ د *i* د استعمال د پاره لاندنی جدول و گورئ :

| | Förfluten tid<br>تېروخت | I allmänhet<br>په عامه توګه | Nutid<br>حال | Framtid<br>راتلونکي زمانه |
|---|---|---|---|---|
| **Årstider**<br>vår, -en, -ar<br>sommar, -en, somrar<br>höst, -en, -ar<br>vinter, n, vintrar | i våras | på våren<br>på vårarna | i vår | i vår |
| **Helger**<br>jul, en, -ar<br>påsk, en, -ar<br>pingst, -en, -ar<br>midsommar, -en, somara | i julas | på julen<br>på jularna | i jul | I jul |
| **Dagar**<br>söndag, -en, -ar<br>måndag, -en, -ar<br>tisdag, -en, -ar<br>onsdag, -en, -ar<br>torsdag, -en, -ar<br>fredag, -en, -ar<br>lördag, -en, -ar | i söndags | på söndagarna | | på söndag |
| **Delar av dagen**<br>morgon, -en, - morgnar<br><br><br>förmiddag, -en, -ar<br>eftermiddag, -en,-ar<br><br><br>kväll, -en, -ar<br><br><br>natt, -en, nätter | i morse<br><br>i måndags morse<br><br>i eftermiddags<br><br><br>i går kväll<br><br><br>i natt<br><br>i går natt<br>natten till i går | på morgonen<br>på morgnarna<br><br>på<br>måndagmorgonen<br><br>på eftermiddagen<br>på eftermiddagarna<br><br>på kvällen<br>på kvällarna<br><br>på natten<br>på nätterna | <br><br><br><br><br>i eftermiddag<br><br><br>i kväll<br><br><br>i natt | i morgon bitti<br><br><br>på måndag morgon<br><br>i eftermiddag<br><br><br>i kväll<br><br><br>i natt |
| **Året och månaderna**<br>januari<br>februari<br>mars<br>april<br>maj<br>juni<br>juli<br>augusti<br>september<br>oktober<br>november<br>december | i fjol; i fjor<br>förra året<br><br><br>i januari | <br><br><br><br>i januari | i år<br><br><br><br>i januari | nästa år<br><br><br><br>i januari |

ج- *i* د ځای د پاره دا ډول وي:

__ Han  bor **i** Stockholm.

دی په ستوکهولم کي اوسيږي.

__ Han satte sig **i** gräset.

دی په وښو کي کښېنوست.

د- *i* تر ځينو صفتونو وروسته:

__ Han är duktig **i** svenska.

دی په سويډني کي تکړه دئ.

__ Hon var kär **i** honom.

دا پر ده گرانه ده.

هـ- *i* تر ځينو اسمونو د مخه:

__ De ligger sjuka **i** influensa.

دوی د ريزش  څخه ناروغه پراته دي.

__ Vad har de **i** lön.

د دوی تنخا (معاش) څو ده.

__ Alla hus kommer att förlora **i** värde.

ټول کورونه به بيه بايلوي.

__ Han delade apelsinen **i** fyra delar.

ده آ مالټه څلور ځايه کړه.

__ Hon kom **i** början av september.

دا د سيپټمبر  په سر کي راغله.

__ De går **i** skolan fortfarande.

دوی تر اوسه لا ښوونځي ته ځي.

*inom*

__ Han kom **inom** synhåll.

دی معلوم سو .

__ Ni måste åka **inom** en vecka.

تاسي باید په یوه اونۍ کي ولاړ سئ .

*längs*

___ De promenerade **längs** floden.

دوی د رود په اوږدو پیاده ولاړه .

*med*

__ Han målade tavlan **med** en tjock pensel.

ده په یوه پنډ برس تابلو رسم کړه .

__ Hon betalade **med** en check .

دې په چیک پیسې ور کړې .

__ Vi reste dit **med** bil.

موږ هلته په موټر کي ولاړو .

__ De kom hit **med** föräldrarna.

دوی دلته د والدینو سره راغله .

__ Hon är släkt **med** homom.

دا د ده خپله ده .

__ Han ska gifta sig **med** henne.

دی به د دې سره واده و کړي .

__ Vad menar han **med** det?

په دې کي د ده څه مقصد دئ ؟

__ Kan jag få prata **med** dig ?

کولای سم چي ستا سره خبري و کړم ؟

*mellan*

__ Eva satt **mellan** herr och fru Blom.

ایوا د ښاغلي او مېرمن بلوم تر منځ ناسته ده.

__ Tåget går **mellan** Göteborg och Stockholm.

رېل د يتبوري او ستوکهولم تر منځ ځي.

__ De kom natten **mellan** torsdag och fredag.

دوی د پنج شنبې او د جمعې ترمنځ په شپه کي راغله.

*mot*

__ De åkte **mot** stan.

دوی د ښار خوا ته ولاړه.

__ Tåg **mot** Malmö.

د مالمو خواته رېل.

__ **Mot** slutet av april brukar våren komm till Sverige.

سويډن ته پسرلی معمولا د اپريل اخري ته راځي.

الف۔ *mot* تر ځينو صفتونو وروسته لکه:

__ Hon är alltid snäll **mot** oss.

دا هر وخت زموږ په مقابل کي مهربانه ده.

ب۔ *mot* تر ځينو فعلونو وروسته لکه:

__ Studenterna demonstrerade **mot** reformen.

محصلانو د نوو اصلاحاتو په مقابل کي مظاهره و کړه.

__ Han bytte sin gamla bil **mot** en ny.

ده خپل زوړ موټر په نوي الیش کړ.

*om*

الف۔ *om* د وخت د پاره لکه:

__ Vi reser **om** en vecka.

موږ یوه اونۍ وروسته سفر کوو.

ب۔ *om* د بدن د غړو د پاره لکه:

__ Vi var rena **om** händerna.

زموږ لاسونه پاک وه.

__ Vi frös **om** fötterna.

زموږ د پښو ساړه کېده.

__ Katten slickade sig **om** nosen.

پشي خپله پزه و څټله.

ج۔ *om* د ځینو قیدي افادو ( adverbial utryck) د پاره لکه:

__ Stockholm ligger norr **om** Malmö.

ستوکهولم د مالمو شمال ته پروت دئ.

__ Hon sitter till vänster **om** Sven.

دا د سوین ښۍ خوا ته ناسته ده.

د ۔ *om* تر ځینو صفتونو وروسته لکه:

__ Hon är rädd **om** sin son.

دا پر خپل زوی بیرېږي.

__ Han är medveten **om** svårigheterna.

دی په مشکلاتو خبر دئ.

هـ ـ *om* تر ځينو فعلونو ورسته لکه:

__ Han bad **om** råd.

ده د مشورې خواهش و کړ .

__ Boken handlar **om** dagens samhälle.

آ کتاب د نننۍ ټولني په هکله دئ.

## *Omkring*

الف ـ د ځای د پاره لکه:

__ Det stod tio äppelträd ( runt ) **omkring** huset.

د کور (تعمير) پر شاو خوا لس د منڼو وني ولاړي وې.

ب ـ د تقريبا په توګه لکه:

__ Han stannade i London **omkring** en vecka.

دی په لندن کي تقريبا يوه اونۍ پاته سو .

## *på*

الف ـ *på* د وخت د پاره لکه:

وخت+د کار ختم

__ Han lagade bilen **på** tre timmar.

ده موټر په درې ساعته جوړ کړ.

که سړی په پورتنۍ جمله کي i راولي نو به يې معنی داسي وي:

__ Han lagade bilen **i** tre timmar.

ده موټر د درو ساعتو په جريان کي جوړ کړئ دئ.

په لومړۍ جمله کي ده درې ساعته وخت په کار اچولئ دئ او کار خلاص سوئ

دئ مګر په دوهمه جمله کي ده درې ساعته په کار اچولي دي مګر د جوړېدو کار لا

نه دئ خلاص سوئ او دی لا مصروف دئ.

ب- *på* په منفي جملو کي چي د وخت اوږدوالئ ښکاره کوي لکه:

__ Jag har inte sett henne **på** två år.

ما دا په دوه کاله نه ده ليدلې.

__ Han får inte gå upp ur sängen **på** en vecka.

دی دي په يوه اونۍ د کټه نه را ولاړيږي.

په لومړۍ جمله کي دوه کاله تېر سوي دي چي ما دا نه ده ليدلې. او په دوهمه جمله کي يوه اونۍ غواړي چي دی د کټه را ولاړ سي.

يادونه: د *på* په هکله نور معلومات په مخکنيو پاڼو کي د *i* د (ب) د جدول څخه په لاس راوړئ.

ج- *på* د ځای د پاره لکه:

__ Lampan står **på** golvet.

څراغ پر مځکه ولاړ دئ.

__ Hon bor **på** landet.

دا په سارا کي اوسيږي.

__ Vi går **på** bio.

موږ سينما ته ځو.

__ Han arbetar **på** sjukhus.

دی په روغتون کي کار کوي.

__ Hon läser **på** universitetet.

دا په پوهنتون کي درس وايي.

د ـ *på* تر ځينو صفتونو ورسته لکه:

__ Jag är säker **på** saken.

زه ډاډه يم پر دغه څه.

__ Han är trött **på** att höra dina råd ständigt.

دی ستا د دا ډيرو مشورو د اورېدلو څخه خسته دئ.

__ Hon var arg **på** sin man som alltid kom för sent till middag.

د دې خپل څښتن ته درد راتئ چي هر وخت د ماښام ډوډۍ ته ناوخته راتئ.

__ Han är rik **på** ideer.

دی ډيري نظريې لري.

__ Han är blind **på** ena ögat.

دی په يوه سترګه ړوند دئ.

__ Han är döv **på** ena örat.

دی په يوه غوږ کوڼ دئ.

هـ ـ *på* تر ځينو فعلونو وروسته لکه:

__ Jag blev bjuden **på** lunch.

زه د غرمې پر ډوډۍ مېلمه سوم.

__ De väntade **på** mig.

دوی ما ته انتظار ايستئ.

__ Jag litar **på** vad du säger.

زه په هغه څه باور لرم چي ته يې وايې.

__ Han ser **på** nyheter.

دی خبرونو ته ګوري.

__ Hon svarar **på** brevet.

دا ليک ته جواب ور کوي.

__ Han ropade **på** hunden.

ده سپي ته ور ناري کړه.

__ Det beror **på** vädret.

په هوا پوري اړه لري.

__ De klagade **på** den dåliga maten.

دوی د آ خرابو خوړو څخه شکایت وکړ.

__ Hon skakade **på** huvudet.

دې سر و ښوراوه.

__ Han ryckte **på** axlarna.

ده اوږې کش کړې.

__ Vi har tio minuter **på** oss, innan bussen går.

موږ لس دقیقې لرو ، د مخه تر دې چې سرویس ولاړ سي.

و ـ *på* د مخه تر ځینو اسمونو لکه:

__ De är **på** väg.

دوی روان دي.

__ Jag gör det **på** ett vilkor.

زه په یوه شرط دا کوم.

__ Han gör det **på** uppdrag av sin chef.

دی د خپل امر په سپارښت دا کار کوي.

__ Molnen ligger **på** 500 meters höjd.

اوریځ پنځه سوه متره لوړه ده.

__ Rummet är 7 m **på** längden och 4 m **på** breden.

آ خونه اووه متره اوږده ده او څلور متره بر داره ده.

__ Hon har en våninng **på** tre rum och kök.

دا يو كور لري چي درې خوني او يوه اشپزخانه لري.

__ Han har en son **på** fem år.

دی يو پنځه كلن زوی لري.

__ Har du något bra exempel **på** det ?

كوم ښه مثال يې لرې؟

يادونه: *å* په ځينو وختو كي د *på* پر ځای په كار لويږي لكه:

**å** ena sidan…**å** andra sidan.

lämna saken **å** sido!

Hon talade **å** hans **vägnar**.

## *Till*

الف ـ *till* د وخت د پاره لكه:

__ Vi stannar **till** den femtonde.

موږ تر پنځلسمي نېټې پوري پاته كيږو.

__ Vänta **till** i morgon!

تر سبا پوري و دريږه.

__ Läxan **till** idag är inte lätt.

د نن ورځي كورنی كار اسانه نه دئ.

__ Finns det några biljetter **till** i kväll?

د نن ماښام د پاره يو څو ټكټونه سته؟

__ Han kom försent **till** middagen.

دی د ماښام ډوډۍ ته نا وخته راغئ.

__ Han kom **till** sist.

په اخره كي دی راغئ.

__ De  ska flytta **till** hösten.

مني ته به دوی کډه سي.

ب- *till* د ځای د پاره لکه:

__ Vi ska resa **till** Stockholm.

موږ به ستوکهولم ته سفر و کړو.

__ Det här är vägen **till** Uppsala.

د اوپسالا لار دغه ده.

__ **Till** vem ska jag vända mig för att få veta det?

چا ته مخ ور و ګرزوم چي  په خبر سو؟

__ Hon åkte tåg **till** Malmö.

دا مالمو ته په ریل کي ولاړه.

__ De promenerade **till** teatern.

دوی تیاتر ته پیاده ولاړه.

__ De åkte buss **till** skolan.

دوی ښوونځي ته په سرویس کي ولاړه.

__ De kan skriva **till** Anders.

دوی اندرس ته لیکلای سي.

ج- *till* تر ځینو فعلونو وروسته لکه:

__ Vad kan den här produkten användas **till**?

دغه محصول د څه د پاره په کار لوېدلای سي.

__ Hon har utvecklats **till** en stor artist.

دې یوې لویې ارتیستي ته انکشاف کړئ دئ.

__ Här förvandlas strömmen **till** likström.

دلته جریان په مساوي جریان بدلیږي.

__ Han valdes **till** ordförande.

دی د امر په توګه انتخاب سو .

__ De längtade **till** Italien.

دوی په اټاليا پسې ديغ وه .

د ـ *till* تر ځينو اسمونو د مخه لګه:

__ Detta har varit **till** hjälp för mig.

دغه زما سره د مرستي د پاره دئ .

__ Jag känner honom **till** namnet.

زه دی په نامه پېژنم .

__ Jag vill dit **till** varje pris.

په هر قيمت چي وي زه هلته ځم .

__ De går **till** bords.

دوی مېز ته کښېني .

__ **Till** lands tar resan fyra dagar.

تر وچي پوري سفر څلور ورځي غواړي .

__ Det är en bekant **till** mig.

دغه زما يو شناخته دئ .

__ Köp boken **till** mig.

آ کتاب ماته را رانيسه .

## *under*

الف ـ *under* د وخت د پاره لګه:

__ Det ägde rum **under** 1700 talet.

په اوولسمه پېړۍ کي پېښه سوه .

__ **Under** dagen är han aldrig hemma.

په ورځ کي دی هیڅ کور نه وي.

__ Det hände **under** kriget.

د جنګ په وخت کي پېښه سوه.

__ Det var **under** Gustav III : s regering.

دغه د دریم ګوستاف د حکومت په جریان کي وو.

__ De levde helt isolerade där **under** två månader.

دوی هلته دوې میاشتي بېخي جلا ژوند کاوه.

__ **Under** julen var han tvungen att arbeta.

په یول کي دی مجبوره وو چي کار و کړي.

ب ـ *under* د ځای د پاره لکه:

__ Hunden låg **under** sängen.

سپی تر کټ لاندي پروت دئ.

__ Det är **under** noll idag, för det är tre minusgrader.

نن درجه تر صفر کښته ده ، ځکه چي منفي درې درجي دي.

__ Jag ska bara ringa till kontoret; **under** tiden kan du väl ta bilen ur garaget.

زه به دفتر ته تلیفون وکړم ؛ تر هغو ته کولای سې چي د ګاراج څخه موټر را وباسې.

## *utan*

__ Han kom **utan** sin hund idag.

دی نن بېله خپل سپي څخه راغئ.

__ Vi är alltid **utan** pengar i slutet av månaden.

موږ هر وخت د میاشتي په پای کي بې پیسو یو.

*utom*

الف ـ *utom* د ځای د پاره لکه:

__ Han var **utom** synhåll.

دی د سترګو تر دید وتلی وو .

ب ـ *utom* د استثنا په توګه لکه:

__ Alla **utom** han hade kommit.

بېله ده څخه نور ټوله راغلي وه .

*vid*

الف ـ *vid* د ځای د پاره لکه:

__ Västervik ligger **vid** Östersjön.

ویسترویک د استر ښن سره پروت دئ .

__ Vi möts **vid** stationen.

موږ د سټېشن سره ملاقات سره کوو .

__ Hon läser **vid** universitet.

دا په پوهنتون کي درس وايي .

ب ـ *vid* د وخت د پاره لکه :

__ Kom **vid** tio tiden.

د لسو بجو په شاو خوا کي راسه .

__ **Vid** 40 års ålder blev han statsminister.

د څلوېښت کلنۍ په شاو خوا کي دی صدر اعظم سو .

__ **Vid** den tiden var han frisk.

په دغه وخت کي دی جوړ وو .

__ Olyckan hände **vid** slutet av resan.

پېښه د سفر په اخر کي و سوه .

__ Han reste hem **vid** en olämplig tillfälle.

دی کور ته پر یوه نا مناسب وخت ولاړ.

ج- *vid* تر ځینو اسمونو وروسته لکه:

__ Han var van **vid** bilen.

دی د موټر سره عادي وو.

د - *vid* تر ځینو فعلونو وروسته لکه:

__ Du vänjer dig snart **vid** hennes dålig humör.

ته د دې د بد خوی سره ژرځان عادي کوې.

*<u>åt</u>*

الف- *åt* د ځای د پاره لکه:

__ **Åt** vilken håll for bilen?

موټرکومي خوا ته ولاړ؟

__ Den for **åt** norr.

د شمال خوا ته ولاړ.

ب - *åt* د غیر مستقیم مفعول indrirekt objekt د پاره لکه:

__ Köp boken **åt** mig.

کتاب ما ته را را نیسه.

ج- *åt* تر ځینو فعلونو وروسته لکه:

__ Han skrattade **åt** henne, för hon ägnade sig bara **åt** sin hund.

ده پر دې و خندل، ځکه چي دې یوازي ځان د خپل سپي سره اخته کړئ وو.

__ Hon gladde sig **åt** danskvällen.

دې د اتڼ(رقص)شپې ته ځان خوشاله کړ.

## *Över*

الف- *över* د ځای د پاره لکه:

__ Han bor i våningen **över** oss.

دی تر موږ یو منزل پورته اوسیږي.

__ Barnen sprang **över** gatan.

کوچنیانو پر سړک و ځغستل.

__ Det är **över** noll idag.

تر صفر درجې ګرمي ده نن.

ب- *över* د ډېروالي د پاره لکه:

__ Huset är **över** 300 år gammal.

آ کور (تعمیر) تر درې سوه کاله زوړ دئ.

__ Klockan är **över** elva.

بجې تر یوولس تیري دي.

__ De var inte **över** 50 personer.

دوی تر ۵۰ تنه ډېر نه وه.

ج- *över* تر ځینو صفتونو وروسته لکه:

__ Hon blev glad **över** presenten.

دا په سوغات خوشاله سوه.

__ Jag är ledsen **över** ditt beteende.

زه ستا د سلوکه خواشینی یم.

د ـ *över* تر ځینو فعلونو وروسته لکه:

__ Flickan gladde sig **över** betyget.

نجلۍ په نمرو ځان خوشاله کړ .

__ Hela tiden klagade han **över** sin tandvärk.

ده ټوله وخت خپل د غاښ د درد څخه شکایت کاوه .

دوهم ـ **Sammanställda prepositioner** مرکبي د ربط کلمې : د ربط

مرکبي کلمې هغه دي چي د دوو کلمو څخه جوړي سوي وي لکه *( för skull )* ,

*(för sedan )* . مثالونه یې:

**Grupp a**

För – sedan

För – skull

Exempel : Han kom till Sverige **för** två år **sedan** .

دی سویډن ته دوه کاله د مخه راغئ.

Kan du riga henne **för** min **skull** ?

ته کولای سې چي زما په خاطر دې ته تلیفون و کړې ؟

Han kom **för** min **skull** .

دی زما په خاطر راغئ.

**Grupp b**

د ربط دغه کلمې داسي جوړي سوي دي چي:

۱ ـ د ربط یوه ساده کلمه + اسم + د ربط یوه ساده کلمه

I stället för

Med anledning av

på grund av

till följd av

vid sidan om

i fråga om

med hänsyn till

till höger om

till vänster om

med undantag av

۲ـ د tack vare سره

۳ـ

i och med

från och med ( = fr. o . m. )

till och med ( = t. o. m. )

Exempel :

Hon kom hit **med anledning av** bröllopet .

دا دلته د واده په خاطر راغله.

Joakim hann läsa fem böcker **i stället för** en **på grund av** att han läste mycket fort .

یو اکیم په و رسېدئ چې د یوه کتاب پر ځای پنځه کتابونه و لولي دا ځکه چي ده ډېر ژر و لوستل.

Bokhyllan står **till höger om** skrivbordet.

د کتابو الماری د مطالعې د مېز ښی خوا ته ولاړه ده.

Hon klarade provet **tack vare** sin stora ambition.

دا په ازموینه کي بریالۍ سوه ، دا ځکه چي دې ډېره غوښتنه درلوده.

Du skall läsa **till och med** sidan 12.

ته باید تر دوولسم مخ پوري ولولي(د دوولسم مخ په شمول).

دریم ـ هغه د ربط کلمې چي د فعل ، صفت او یا اسم څخه جوړ سوي وي :

۱ ـ

angående

beträffande

oavsett

rörande

enligt

jämte

medelst

۲ ـ bortsett från

Exempel: Man gjorde en utredning **angående** behovet av daghem i staden.

سړي په آ ښار کي د يوه وړکتون د اړتیا په هکله يوه کتنه و کړه .

**Enligt** väderraporten skall det bli fint väder i morgon.

د هوا د رپورټ له مخي به سبا ښه هوا وي .

TV – programmet igår var utmärkt **bortsett** från ett tråkig föredrag.

د پرون ورځي د تيوي پروګرام ډېر ښه وو ببله دې څخه چي بيان يې په نظر کي و نيسو .

# د جملې جوړښت Ordföljd

په سویډني ژبه کي جمله یو خاص جوړښت لري . په خبریه جمله کي هر وخت (لومړی فعل) په جمله کي دوهم ځای لري. د دې مانا داده چي کله په جمله کي دوه فعلونه موجود وي لکه:

Jag kan åka till Stockholm i morgon.

زه سبا ستوکهولم ته تلای سم. د جملې دغه جوړښت په سویډني کي د rak ordföljd په نامه یادیږي.

دغه جمله کېدای سي چي پر څو ډوله و لیکل سي لکه:

1 - I morgon kan jag åka till Stockholm.

2 - Till Stockholm kan jag åka i morgon.

په لومړۍ جمله کي وخت چي I morgon دئ د جملې سر ته راغلئ دئ او kan چي په جمله کي لومړی فعل دئ پر دوهم ځای راغلئ دئ. په جمله کي دوهم فعل åka دئ.

په دوهمه جمله کي ځای چي Till Stockholm دئ د جملې سر ته راغلئ دئ او kan چي په جمله کي لومړی فعل دئ بیا هم دوهم ځای لري.

د جملې دغه ډول جوړښت د omvänd ordföljd په نامه یادیږي.

په یاد یې و لرئ چي که یو huvudsats په subjekt (فاعل) شروع سي نو جمله rak ordföljd لري او که په یوه adverbial یا مفعول یا یوه bisats شروع سي نو omvänd ordföljd لري لکه په پورته مثال کي .

دلته لاندي به د huvudsats د مختلفو جملو جوړښت و لولئ:

| | |
|---|---|
| I. Hon ska träffa honom **i morgon.** (tidsadverbial ) | **I morgon** ska hon träffa honom. |
| Han köper **Expressen** ( objekt) på hemvägen. | **Expressen** köper han på hemvägen. |
| Jag vill inte bo **där**. | **Där** vill jag inte bo. |
| ( hs ) Jag stannar hemma, **om du vill**. | ( bs ) **Om du vill**, stannar jag hemma. ( hs ) |
| ( hs ) Jag ska stanna hemma, **om du vill**.( bs ) | ( bs ) Om du vill, ska jag stanna hemma. ( hs ) |
| Han frågade: ”**Kan du komma?”** | **” Kan du komma?”**, frågade han. |
| II. **Påstående** | **Fråga** |
| Han bor här.<br>Här bor här. | Bor han här? |
| Han bor inte här.<br>Här bor inte han. | Bor han inte här? |
| Han ska komma idag.<br>Idag ska han komma. | Ska han inte komma idag? |
| | **Varför** kommer hon?<br>**Vem** kommer där borta?<br>**Vad** ska hända i morgon? |
| III. **Uppmaning** | |
| Kom nu!<br>Sätt dig på stolen!<br>Sätt du dig här och lugna dig! | |

## د تابع جملې Bisats جوړښت :

په لیکنه کي باید bisats د huvudsats سره یو ځای راسي . Bisats په یوازي ډول کومه مانا نه لري بلکي د Huvudsats یوه برخه ده یاني bisats د huvudsats یوه شرحه کوونکې برخه ده لکه:

Exempel:

( hs ) Karl gick.

( hs ) Karl gick, när klockan var sju. ( bs )

Bisats د Huvudsats په باره کي څه وايي . مثلا په لوړ مثال کي Bisats د هغه وخت په هکله خبري کوي کوم چي کارل ولاړئ.